۲. زمونږ ښوونکي نه غواړي چې د تدريس موجود میتودونه چې له پخوا څخه مروج دي، پرېږدي. ځکه چې په موډرن او نويو میتودو نوکې هغوي ته نور مکلفیتونه سپارل کېږي. هغوی اکثراً نه شي کړای چې خپل ځانونه د نوی ژوند له حالت سره عيار کړي.

۳. ګروپي تدريس لويو خونو ته ضرورت لري. مګر زمونږ د ښوونځيو خونی کوچنی دي.

۴. دا میتود د نورو میتودو په بنست ډير مصارف غواړي.

۵. ګروپي تدريس ډېر کار کوونکو ته اړتيا لري. مګر زمونږ په هېواد کې د هغوي استخدامول او اماده کول مشکلات پيدا کوي.

۶. ګروپي تدريس يو پيچلي اداري، اضافی کار او اضافي کار مندانو ته ضرورت لري چې نه په اقتصادي لحاظ درست وي او نه په تربيوي لحاظ نتيجی يي دغوښتل شوو اهدافو سره برابر وي.

۷. ټول زده کوونکی د ګروپی تدريس څخه يو شان ګټه اخستی نه شي نو ځکه يې موثريت لږ دي.

## ۱۴. د مفاهمی روش(Communication):

په اصطلاحي توګه د مفاهمی(Communication) کلمه د نظريو د بدلونې معنا ورکوي او هم د دوه اړخيزو نظرياتو او احساساتو شريکيدلو ته وايي. کله چې مونږ معلومات، نظرې او تجربې يو له بل

سره تبادله یا شریکي کړو نو دې ته مفاهمه (Communication) وایی.
خو په ښوونه او روزنه کې د مفاهمې روش د تعلیم له نویو میتودونو ځخه یو ځانګړی میتود دې چې پدې میتود کې ښوونکی خپل پیغام یوه یا ډېرو زده کوونکو ته انتقالوي. ممکن دا پیغام په شفاهي توګه، یه سمبولپ توګه، په مخصوصو رمزونو (ارشارو) او یا تصوېرونو په بڼه اخستل شوی وي. دا مفاهمه هغه وخت اغېزمنه وي چې پیغام درست انتقال شوی وي.

که په خپله ښوونکی د مفاهمې، مخابرې په فن کې پوره معلومات ولري او زده کوونکو ته پیغام په خپله انتقال کړي نو پدې صورت کې به زده کړه ښه موثره وي.

د مثال په توګه، که ښوونکی یوه نوی کلیمه زده کوونکي ته انتقال کړي او زده کوونکي و کولای شي چې نوموړی کلیمه سمه ادا کړي خو و نه شي کړای چې په خپله ژبه یې بیان کړي دا موثره زده کړه نه ده.

## د مفاهمې یا مخابرې عناصر:

په مفاهمه کې څلور عمده عناصر دي:

۱. منبع:

دا هغه څوک دی چې مفاهمه کوي یا پیغام انتقالوي.

لکه ښوونکی.

۲. پیغام:

علم یا معلومات ته وایي چې د ښوونکی په وسیله زده کوونکي ته انتقالیږي.

۳. چاینل:

دا یو مخابراتي وسیله ده چې د هغه په وسیله ښوونکی شاګردانو ته پیغام لیږي.

۴. پیغام اخستوونکي:

دا هغه څوک چې پیغام اخلي لکه زده کوونکي.

## د مفاهمې ډولونه:

مفاهمه درې ډوله ده:

الف. مخامخ مفاهمه:

دا مفاهمه د (فرد له فرد سره خبروکولو، اوریدلو) مفاهمې ته وایئ پدی ډول مفاهمه کې ښوونکی له شاګرد سره مخامخ مفاهمه کوي یعنې ښوونکی خبری کوي او شاګرد د هغه خبرو یا لکچر ته غوږ نیسي او هم شاګرد له ښوونکو سره سترګه په سترګه ارتباط ټینګوي. دا ډول مفاهمه معمولاً په سیمنارونو، غونډو او کنفرانسونو کې کیږی. او ډیره اغیزمنه وي. ځکه چې زده کوونکي چانس لري چې له ښوونکی څخه مخامخ پوښتنه وکړي او د خپل شک او تردد لرې کړي.

ب. د لیکنی او لوستنی مفاهمه:

پدې ډول مفاهمه کې رمز ایستوونکی دیکودر (Decoder) هغه څوګ دې چې رمز په هغې ژبې اړوي چې د پوهیدو وړ وي رمز لېږدوونکي ایندیکوړر، (End coder) هغه څوګ چې پیغام لېږي مګر د رمز ایستوونکی سره مخامخ نه وي. یعنې دیکوډراو اندیکودر جسماً یو له بله لرې وي یا په ساده ژبه که وویل شي دیکوډر لوستونکی اواندیکوډر لیکونکی دي. پدی ډول مفاهمه کې لیکلی پیغام د اخبار، مجلې، کتاب او داسی نورو وسایلو په وسیله انتقالېږي بیا هم دا ډول مفاهمه د مخامخ مفاهمې پشان موثره نه وي دلیل یې دا دي چې لوستونکی د لیکونکی د لیکنې د لوستلو څخه خوند اخلي مګر لیکونکی لیدلې نه شي او که د کوم مشکل سره مخامخ شي نو توضیح کول به یی لویه ستونزه وي.

ج. د لیدنې او کتنې مفاهمه:

پدی ډول مفاهمه کې دواړه منبع (لکه مفاهمه کوونکی) او مشخص کوونکي (هغه څوک چې پیغام ترلاسه کوي) یو له بله څخه په فزیکي لحاظ لکه د لیکنې او لوستنې مفاهمې په شان یو له بله څخه جلا وي. خو دومره فرق لري چې کتوونکي دواړه مفاهمه کوونکي او لوستوونکي د فلم د پردی پر مخ د مفاهمی په حال کې لیدلای شي.

# د تدریس تخنیکونه

## پوښتنه:

هغه مشکل چې د ښوونکي د لارښونې په وخت کې، زده کوونکي ته پیدا کېږي د پوښتنې په نامه یادېږي.

## د پوښتنو ارزښت:

دا انساني خصوصیت یو مهم عنصر تجسس دي چې په مرسته یې انسان ډېر شیان زده کوي. کله چې انسان خپل شاو خوا وګوري نو په جهان کې د مختلفو شیانو په لیدلو سره حیران پاتې شي، دا حیرانتیا د دې سبب ګرځي چې انسان د هغو شیانو په باب معلومات تر لاسه کړي چې په کائناتو کې موجود وي بناً پوښتنوته اړتیا پیدا کوي. چې دا پوښتنې په حقیقت کې د تدریس اساس رامنځته کوي چې یوازې علم دي پوښتنو ته ځواب وایي. په کوم ځای کې چې پوښتنې نه وي هلته صحیح پوهه وجود نهٔ لري.

د تدریس په بهیرکې پوښتنې لاندې ارزښتنونه لري:

۱. هغه لومړنی شی چې د پوښتنو اهمیت توضیح کوي د پوښتنو ځینې تخنیکو نه دي چې پاک خدای په قران مجید کې د الماعون په سورت کې فرمایلي دي .

اریـت الـذی یکـدب بـا الدیـن فـزالک الذی یدع الیتیم ولدیخض علی طعام المسکین.

ترجمه:

ایـا ویـنې ته هغه کس چې تکذیب کوی په ورځ د جزا پس دي هغه کس دی چې رټي یتیم او رغبت نه ورکوي په طعام ورکولو د یتیم سره.

۲. هغـه دوهمې شې چې د پوښتنو ارزښت ښي د پیغمبر (ص) ځینې طریقې دي نـو کله چې هغه تدریس کاوه نو لومړی به یې پوښتنه طرحه کړه او بیا به یې خـپله جواب ووایه چې په حقیقت کې پیغمبر علیه السلام د هغه شي اهمیت د پوښتنو کولو په ښه څرګندوله.

۳. د قدیم یونان لوی فیلسوفان لکه افلاطون، سقراط هم د پوښتنو کولو دا تخنیک استعالوه چې لومړی به یې پوښتنې طرح کړی او بیا به یې جوابونه ورکول.

۴. پـه ښوونځـیو کې د پوښتنو کولو مهم مقصد دا دی چې د زده کوونکو پخوانی معلومـات وازمـایی نـو مخکې له دې نه چې نوی درس پیل کړي. ښوونکی له زده کوونکو څخه د پخواني درس پوښتنه کوي چې څومره یی زده کړیدی؟

۵. پوښتنې زده کوونکي زده کړې ته هڅوي.

۶. پوښتنې شاګردان تشویقوي او تفکر یي پاروی.

۷. پوښتنې اړونده موضوع شاګردانو ته په زړه پوری کوي او هم هغوي د درسي

زده کړې له پاره اماده کوي.

۸. د درس په بهير کې پوښتنې د درس پيچيده ګي او ابهام لرې کوي.

۹. پوښتنې د ښوونکي د ستونزې په هوارې کې مرسته کوي.

۱۰. پوښتنې د ښوونکي د تدريس په ارزيابي کې مرسته کوي. او هم په ګوته کوي چې څومره هدف تر لاسه شوېدي.

۱۱. پوښتنې د زده کوونکو د علمي برياليتوب په ازمښت کې پوره تعاون لري او همدا ډول د تدريس له پاره د بهترينې طريقې په ټاکلو کې مرسته کوي.

۱۲. پوښتنې له ښوونکو سره مرسته کوي چې زده کوونکي د درس په ټولو برخو باندې پوه شوېدي او کنه؟

## د پوښتنو ډولونه:

## پوښتنې پنځه ډوله دي:

### ۱- مقدماتي پوښتنې:

مقدماتي پوښتنې هغو پوښتنو ته وايي چې ښوونکي يې د درس په پيل کې کوي. د دې پوښتنو هدف دا دي چې ښوونکي د زده کوونکو پخواني معلومات ارزيابي کړي او د زده کوونکو نوي معلومات د پخواني سره ارتباط ورکړي چې زده کوونکي د درس له پاره تشويق شي.

## ب. انکشافي پوښتنې:

انکشافي پوښتنې هغو پوښتنو ته وايې چې د درس په جريان کې وشي. په دې پوښتنوکې ښوونکی معلوموي چې زده کوونکی په ورکړل شوي درس باندې پوهېدلی او کنه؟ دا پوښتنې د دې له پاره کېږي چې زده کوونکي د ښوونې او زده کړې په جريان کې فعالانه ونډه واخلي. او د موضوع مشکلې برخې په خپل ځای کې توضيح شي.

## ج. لنډې پوښتنې:

هغه پوښتنې چې ښوونکی يې د درس په پای کې له شاگردانو څخه کوي اختصاری‌پوښتنې نومېږي. دا پوښتنې د دې له پاره کوي چې هم معلومات او هم د درس عمليه ارزيابي شي.

## د. معلوماتي پوښتنې:

دا هغه پوښتنې دي چې د دي پوښتنو په وسيله د زده کوونکو د علم په باب معلومات ترلاسه کېږي. دا ډول پوښتنې د زده کوونکو حافظې ته انکشاف ورکوي؛ د مثال په توگه:

- د افغانستان جغرافيوي موقيعت څنگه دی؟
- سيد جمال الدين افغان څه وخت زېږېدلی؟

### هـ هرارخېزې پوښتنې:

دا هغه پوښتنې دې چې د جوابونو له پاره يې ډېر سخت کار ته اړتيا ده دا ډول پوښتنې شاگردان مجبور وي چې مطالعه وکړي. د مشکل په باب غور او فکر وکړي.

د مثال په توگه: کله چې ښوونکی د فرانسې د انقلاب واقعات تدريسوي، هغه له زده کوونکو څخه غواړي چې د فرانسی د انقلاب علتونه ووايي.

## ۱٦. د مناسبو پوښتنو ماهيتونه:

د ښو پوښتنو ماهيتونه يا خصوصيتونه په لاندې ډول لست کېږي.

- پوښتنې بايد داسې ترتيب شي چې هر زده کوونکی يې په مقصد وپوهېږي.
- پوښتنې بايد ساده وي. يعنې د زده کوونکو له علمي سويی څخه بهر نه وي.
- پوښتنې بايد واضح او روښانه وي او په توضيح کې يي هيڅ ابهام نه وي.
- پوښتنې بايد لنډې وی. ځکه چې اوږدې پوښتنې ځينی وخت زده کوونکی په اشتباه کې اچوي.
- پوښتنې بايد د زده کوونکو ذهني سويی سره برابرې جوړ شي نه بايد د ټولو ټولگيو له زده کوونکو څخه د يوی پوښتنې ځواب وغوښتل شي.

- پوښتنې باید له نمرو سره اړیکه ولري او هم منطقي تسلسل پکښې وي.
- په پوښتنو کې له زده کوونکو څخه د "هو" او "نه" په شکل ځوابونه ونه غوښتل شي. ځکه چې په دې ډول پوښتنو کې د زده کوونکو پوهه نه ارزیابي کېږي.
- پوښتنې باید ځیني هدفونه ولري. ښوونکي باید لومړي دا تعین کړي چې پوښتنې د کوم مقصد له پاره کېږي.

## ۱۷.د پوښتنو تخنیکونه:

د پوښتنو تخنیک هغه میتود یا طریقه ښي چې پوښتنې په کې ترسره کېږي. د پوښتنو کولو ډېر ښه میتود په لاندی درې عنصرو استوار دي:

۱. د ښوونکي پوښتنې.
۲. د زده کوونکو ځوابونه.
۳. د زده کوونکو پوښتنې.

په لاندې ډول د هر یوه په باب پوره معلومات ورکول کېږي.

۱. د ښوونکو پوښتنې:

ښوونکی باید خپلې پوښتنې په لاندې ډول وړاندې کړي.

(I) د پوښتنو کولو په وخت کې باید د ښوونکي آواز طبعي شکل ولري. یعنې نه ډېر ټیټ او نه ډېر جګ وي.

## د ژوند معیار لوړول:

اقتصـاد د یوه هېواد د ملادتیر حیثیت لري. یو هېواد هیڅکله پر مخ نشي تللـې چـې اقتصـادي پایـه یـې قوي نه شي. پدې برخه کې تعلیمی نصاب یو حـیاتي ارزښتـناکه رول لوبوي. یعنې (د عایداتي تولیداتو پیاوړتوب د پیداوارو زیـاتوالی، د انسـاني قـواو پـه کـارول، د طبعـیي مـنابعو په کار اچول او ترې مناسـبه ګټـه اخسـتل، د ښـارو څمکـو له پـاره د اوبـو د کانـالونو ایسـتل، د مسلکي اشخاصو استخدامول) د تعلیمي نصاب لوی مسٔوولیتو نه دي

## د ملي توامیت انکشاف:

مـلي یـو والـې د یـوه هېـواد له پـاره ډیـرزیات د اهمیـت وړدی. د تعلیي نصـاب دنـده داده چـې مـلی توامیت ته پراختیا ورکړي او زده کوونکي داسی وروزي چـې له خپل پلارني هېواد سره مینه ولري او په ژوره توګه یې اخلاقي او معنوي احساسات پیاوړي شي.

## د ټولنې عصري کول:

د دریمـې نړی یوه ډېره مهمه مسابقه د ټولنې عصري کول دي چې ګام په ګـام بـاید د نـړی چټـک پـر مخـتګ تعقیب کړي. موږ هغه وخت دې سپیڅلي هـدف تـه رسیدای شو، چې زموږ تعلیمي نصاب په نویو معیارو ډیزاین شي او او لاندیني څانګیر تیاوې ولري:

(II) د پوښتـنو کولو په وخت کې باید هیڅ زده کوونکی له پامه ونه لوېږي. او ښوونکـي بـاید ټولی پوښتنې د زده کوونکو په مینځ کې داسی توضیح کړي چې هر یو یې په علاقه مندی سره جوابونو ته آماده وي.

(III) ښوونکـي بـاید لومړی پوښتنه وکړي او بیا یو څوک وغواړی چې ځواب وزکړي. داسی نه چې لومړی شاګرد وغواړی او بیا پوښتنه وکړي.

(IV) زده کوونکی پدې باید پوه نه شي چې دا ځل زما نوبت دې.

(V) ښوونکی باید د پوښتنو ترپیل له مخه ټول زده کوونکي متوجه کړي.

(VI) داسې پوښتنې باید وشي چې د زده کوونکو تفکر ته پراختیا ورکړی.

(VII) ښوونکـی دی بـیره نـه کـوي. زده کوونکو ته دې وخت ورکړي چې په پوښتنه کې فکر وکړي او جواب ووایې.

(VIII) ښوونکـی بـاید یـوه پوښتنـه په بېلابېلو ممکنو طریقو سره وکړي چې هر زده کوونکي د پوښتنې په هر اړخ باندې ښه وپوهېږي.

## ۲. د زده کوونکو ځواب:

ښوونکی د زده کوونکو د ځواب ورکولو په ترڅ کې باید لاندي شیان په نظر کې ونیسی.

(I) ښوونکی باید زده کوونکي داسی وهڅوي چې د ځواب ورکولو په وخت کې متردد نه شي.

(II) ښوونکـی بـاید له زده کوونکـو سـره د خواخـوږی له مخـې چلـند وکړي. د زده کوونکو غلط ځواب ورکولو په صورت کې دې غصې څخه کار و انه خلي.

(III) کـه زده کوونکـي نېمګړی ځواب ووايي بايد له هغه څخه دي نوري پوښتنې هم وکړي چې د هغه جواب نېمګړتيا پوره شي.

(IV) غلط ځواب بايد په خپل ځای کې صحيح شي او ښوونکي بايد د غلط ځواب دليل هم واضح کړي.

(V) ښوونکي بايد د ځواب ورکولو په وخت کې له زده کوونکی سره مرسته ونه کړي.

(VI) زده کوونکي بايد غير ارتباطي پوښتنو ته تشويق نه شي.

(VII) کـه پوښتـنه پـه طـبعی توګـه ګونګه يا مبهمه وي نو ښوونکی بايد د هغی پوښتنې په اړوند نوری پوښتنې وکړي چې ښه واضح شي.

## ۳. د زده کوونکو پوښتنې:

ځيـنې وخـت زده کوونکـی لـه ښوونکـي څخـه مخـتلفې پوښتـنې کـوي. ښوونکی بايد د هغوی له پوښتنو سره په لاندی ډول چلند وکړی.

(I) پـه ټولګـي کـې بـايد له مينـی او محبت څخه ډکه فضا رامينځته شي چې زده کوونکي داسې فرصتونه تر لاسه کړي چې په آزادانه توګه پوښتنې وکړای شي.

(I) پـه ټولګـي کـې بـايد لـه مينی او محبت څخـه ډکه فضا رامنځته شي چې زده کوونکـي داسـی فرصـتونه او چانسـونه تـر لاسـه کړي چې په آزادانه توګه پوښتنې وکړای شي.

(III) ښوونکـی باید ځو زده کوونکو ته اجازه ور نه کړي چې ټول په یوه وخت کې پوښتنې وکړي.

(IV) ښوونکـي بـاید کوښـښ و نـه کـړي چـې ټولو پوښتنو ته په خپله ځوابونه پیدا کړي.

(V) ښوونکـي بـاید د دي پروا ونه ِلري که ځینې وخت زده کوونکي د هغه له جوابونو سره موافق نه وي.

(VI) سطحي او غـیر ارتـباطی پوښتنو ته باید په سطحي ډول جوابونه ورکړای شـي. خـو ژوری او هـر ارخیزه پوښتنې باید ښې توضح شي او ښه مناقشه وربانديې وشي.

(VII) د غیر ارتباطي او د وخت ضایع کوونکو پوښتنو باید مخه ونیولای شي.

## د مناقشې تخنیک:

مناقشـه پـه لغـت کـې مشاجرې، مباحثې او محاورې ته وایي. خو په ښوونـه او روزنـه کـې مناقشـه د زده کـړې یـو پـه زړه پـوري او هرارخیزه تخنیک دي.

د مـثال په توګه: زده کوونکو ته د یوې ستونزې د حل په باب وظیفه ورکـول کیـږي او زده کوونکـي کوښـښ کـوي چـې خپـلي نظرې د اړونده موضوع په ارتبـاط وړاندې کړي.

په دې ترتیب سره تقریباً ټول زده کوونکي په مناقشه کې برخه اخلي. کله چې نوموړی موضوع تر څیړنې لاندې نیول کېږي باید لاندی ټکو ته پام وشي.

(I) د مناقشې له پاره دې داسې عنوان یا موضوع ونه ټاکل شي چې یو ځواب ولري

z < y<× نو z<× دی

(II) کله چې د خلکو ګڼ شمېر په مناقشه کې برخه اخلي نو د موضوع په اړوند بېلابېلی نظریې وړاندې کوي. نو له دي کبله له مناقشې څخه ښه نتیجه ترلاسه کېږي.

(III) مناقشه باید په پای کې یوه نتیجه ورکړي.

(IV) که د برخه والو مناقشه اوږده شي نو باید موضوع خلاصه کړي چې نتیجه ورکړي؟

- کړنلار:

- د ښوونکودنده:

کله چې یوه موضوع یا عنوان د مناقشې له پاره ټاکل کېږي باید لومړي ښوونکی نوموړی موضوع په فلسفي ډول زده کوونکو ته توضح کړي. چې د موضوع په مطلب ښه وپوهېږي. یعنې ښوونکي او زده کوونکي دواړه دې هر اړخیزه چمتووالی ولري.

ښوونکی دې په موضوع کې داسې مواد ځای په ځای کړي چې د مناقشې له پاره زمینه برابره شي. که پدي ترتیب سره ټول حالتونه په خپل خپل ځای کې وکارول شي او هم ښوونکي وکړای شي داسې فضا رامنځته کړي چې ګروپونه په غیر رسمي وخت کې په خپلو کورو کې پر نوموړي موضوع کار وکړي نو په زړه پوری نتیجه به تر لاسه شي.

- د ګروپ د مشر دنده:

د ګروپ لیډر (مشر) په مناقشه کې ډېر مهم رول لوبوي. هغه لومړي د پروګرام په پیل کې د مناقشې په باب ښه توضیحات ورکړي او هر برخه وال په هغو موضوعاتو پوهېږي چې په مناقشه کې تر مباحثې لاندي نیول کېږي.

د ګروپ مشر لومړي غونډه پرانیزی. د غونډې په ترځ کې د برخه والو تیروتنې اصلاح کوی او ورسره مرسته کوي. چې خپل پر مختګ ارزیابي کړي. سرګروپ باید خپل ځان د مناقشې حاکم نه کړی یعنی د نورو نظر دې خپل نظر تابع نه کړي. باید داسی دوستانه فضا رامنځته کړي چې د غونډی هر برخه وال په آزادانه ډول خپل نظر وړاندې کړي په پای کې دې د ګروپ مشر د برخه والو له بېلابېلو نظریو څخه داسې یوه نتیجه تر لاسه کړې چې ټولو برخه والو ته د قبول وړ وي.

## - د برخه والو ونډه:

د برخه والو ونډه د ټاکلی موضوع په باب ډېر ارزښتناکه رول لري تر هر څه له مخه باید برخه وال د هغېر موضوع په باب پوره معلومات ولري چې هغوپ ته سپارل کېږېپ بيا د مشر په مرسته په موضوع کې فعاله برخه اخلـپ او خپلې نظريی څرګندوې په مناقشه برياليتوب د برخه اخستونکو فعالې ونډې پورې اړه لري. بناً برخه وال باید ډېر محتاط، جدي، او علاقه مندوي. د برخه والو خبري باید ساده او بي ريا وي. هغوي باید له پچپليو څرګندونو څخه ځانوته وژغوري. برخه وال باید يو او بل ته د احترام په سترګه وګوري او هر يو ته وخت ورکړي چې خپل نظر څرګند کړي. داسي ونه کړي چې نوموړی موضوع يوازې خپل ځان پورې منحصره کړي او د نورو نظريو ته اهميت ورنه کړي. هغه باید پوره صبر او حوصلې سره د نورو پر نظريو او مفکورو غور وکړي او د مناقشي په وخت کې بی ځايه اندیښني او چورتونه ونه وهي.

نتيجه (Conclusion) د مباحثی په پای کې باید مناقشه ارزيابي شي. هر برخه وال په خپله ارزيابي کولی شي چې دا اصلاً د مناقشې په تخنيک کې د هغه مهارت پياوړی کوي. دا باید وليکل شي چې په مناقشه کې ټولو برخه والو يو له بله سره مرسته کړې ده يا نه. او دا هم ياداشت شي چې په مناقشه کې کوم برخه وال حاکيمت لري او يا کوم برخه وال مباحثه ځان پورې منحصر وي. سربېره پر دې، د مباحثې ورستنی نتيجه هم باید وليکله شي.

# ۱۹. د اووم فصل په اړه ترتیب شوی

## چارټ




عصري ستراتیژۍ او طریقې



# ۲۰. د اووم فصل په اړه پوښتنې

۱. د لکچر میتود څه ډول میتود دی؟ ښېګنې او نېمګړتیاوې یې توضح کړئ.

۲. څنګه کولای شئ چې د لکچر میتود اغېزمن کړئ؟

۳. د دندې ورکولو میتود څه ډول میتود دې؟ ښېګنې او نېمګړتیاوي یې توضح کړئ.

۴. د پروژې د میتود او د پروژې ډولونه توضح کړئ.

۵. د پروژې میتودونه څه ډول قوانین لري؟ تشریح یې کړئ.

۶. د پروژې میتود ښېګنې او نېمګړتیاوې تشریح کړئ.

۷. د پوښتنو کولو روش څه ډول روش دي او د چا له خوا رامنځته شوېدي؟

۸. مایکرو تدریس څه ډول تدریس دي؟ ښېګنې او نېمګړتیاوې یې تشریح کړئ.

۹. د پروګرام مطابق زده کړه څو ډوله ده؟ د خطي او څانګه ییز پروګرامونو په مینځ کې فرق څه دي؟

# اتم فصل

# د زده کړې مواد

## ۱. د سمعي او بصري مواد (Audio Visuals) په هکله معلومات:

### د سمعی او بصري کمکی مواد تعریف:

په لغوي توګه، سمعي (Audio) اوریدنې بصري (Visual) د لیدني او اید (Aid) د مرستنې معنا لري او په اصطلاح کې سمعي او بصري هغه مرستندوي موادو ته ویل کېږي چې په ښوونېز او روزنېز بهیر کې له ښوونکي سره په تدریس کې مرسته کوي.

دا اصطلاح مونږ په هر اړخېز ډول د هغو سرچینو له پاره کاروو چې تدریس لا ښه روښانه با معنا، په زړه پورې او اغېزمن کوي.

## - سمعي کومکي مواد:

دا هغه مواد چې په سترګو نه لیدل کېږي. خو د تدریس په وخت کې یې زده کوونکي اوري. مثلاً راډیو، ټیپ ریکاډر، ګرافون او داسې نور د سمعي او کومکي مواد مهمې وسیلې دی.

## - بصري کومکي مواد:

دا هغه مواد دي چې د لکچر په وخت کې زده کوونکي لیدلای شي. خو

اوریدو وړ نه وي؛ لکه: توره تخته، تباشیر، چارتونه، نقشې، موډلونه او د اسې نور.

### - سمعي او بصري کمکي مواد:

دا هغه مواد دي چې د تدریس په وخت کې د لیدو او هم د اوریدو قابلیت لري؛ لکه: ټلویزیون، کمپیوتر، فلم ستریپ او داسې نور.

## ۲. د سمعي او بصري کمکي موادو اهمیت:

د ښوونې او روزنې لوی عالم ویلبر (Welber) وایې: " مونږ علم د خپلو حواسو په وسیله زده کړه کوو. دا علم ۴۰٪ د بصري ۲۵٪ د سمعي او ۱۷٪ د عملي تجربو په مرسته تر لاسه کوو"

د ده له نظر څخه څرگندېږي چې د علم په زده کړه کې بصري حس لویه برخه لري او هم له دې سره ورته یو چینایي عالم ویلی دي" اورېدل، هیرېدل، لېدل، یادېدل، او په خپله کول پوهېدل دي" همدا راز د ښوونې او روزنې متخصصین وایې" مونږ د اوریدلو په وسیله ۱۰٪ زده کړه او د لېدو په وسیله ۵۰٪ زده کړه د اورېدلو، لېدلو او عملي کولو په وسیله ۹۰٪ زده کړه تر لاسه کوو"

له پورتینو څرگندونو څخه معلومېږي چې سمعي او بصري کمکي مواد په ښوونېز او روزنېز بهیر کې ډېر ارزښت لري او په لاندې ټکیو کې یې اهمیت ښه څرگندېږي.

الف. په ماشومانوکې عملي جهان بیني تقویه کړي.

ب. د ماشومانو د تفکر، تحقیق او قضاوت کولو قابلیت ته وده ورکړي.

ج. ماشـومان لــه هــر ډول بــی اعــتقادیو(Dogmatism) او پوچــو عقــیدو (Superstitions) او مریتوبونو څخه آزاد وروزي.

د. د هغوی علمي زیر مې لا پیاوړې کړي.

. لنډه دا چې تعلیمي نصاب د یوه هېواد په نېک مرغۍ او پراختیا کې یـو ګټـور رول لـري او هـم له دې حقیقـت څخـه هیڅوک سترګی نه شي پټـولی چـې بـې لـه مـډرن تعلیمي نصاب څخه هېڅ ملت خپلې ټولنې ته عصري بڼه نه شي ورکولای.

## ۴. د تعلیمي نصاب عناصر:

د تعلـیمي نصـاب پراختیا بېلا بېلې مرحلې او عناصر لري چې باید د کار په بهیر کې هغوی ته خاص پام وشي. دغه عناصر دادي:

الف. هدفونه، ب. محتویات، ج. تدریسی میتود، د. ارزیابي.

## الف. هدفونه:

هدفونـه هغـه سـلوکې او کرداري تغیرات دي چې د یوه کس په شخصیت کـې د یـوه ځـانګړی تعلـیمي او تربیـتی کورس په وسیله را منځته کېږي. خو تعلـیمي او تربیـتي پروګـرام چې هدف ونه لري، د هغې کشتی مثال لري چې په بحر کې پر یوه نا ټاکلي سمت روانه وي.

- د زده کړې پروسه په زړه پورې او اغېزمنه کوي.
- تدریس په واقعي مفهوم سره کېږي.
- زده کوونکي د سمعي او بصري کمکي موادو په استعمال کې په پوره علاقه مندي سره برخه اخلي.
- د زده کوونکو تفکر انکشاف مومي.
- مبهم او نا معلوم شیان په واقعي شکل سره څرګندوي.
- د زده کوونکو تجربو ته حقیقي بڼه ورکوي هغوي خودي فعالیت ته هڅوي.
- هغه درس چې د سمعي او بصري کمکي موادو په وسیله زده کېږي هیڅکله نه هېرېږي.
- د زده کوونکو ابتکاري او تخنیکي قدرت ته انکشاف ورکوي.
- پیچلي او مغلق شیان ساده کوي چې د پوهېدو وړ شي.

## ۳. د سمعي او بصري موادو د کاروني تخنیکونه:

- سمعي او بصري کمکي مواد باید پاک وي زړه راښکوني وي.
- سمعي او بصري کمکي موادو باید ارزان قیمته او محیطي وي.
- باید کلک او پایداره وي.
- باید ښوونېږ او روزنېږ مفاهیم او معیارونه بشپړ کړي.

- هغوي باید په مناسب وخت او ځای کې وکارول شي.
- باید په پر لپسي توګه په مناسب نظم او ترتیب سره وکارول شي.
- له کارولو څخه وروسته باید ښه ځای کې وساتل شي.

## ۴. د سمعي او بصري مختلفو کمکي موادو پیژندګلوي:

### ۱. توره تخته/ د تباشیر تخته:

توره تخته/ د تباشیر تخته په مهمو بصري کومي موادو کې شمېرل کېږي او د ټولو مضمونونو په تدریس کې تری ګټه اخلي. د درس مهم ټکي، د کلیمو معنا ګانې، جملې، د درس لنډیز، تعریفونه او داسې نور مهم شیان پر تخته کې لیکل کېږي.

تخته باید پاکه اوستره وساتله شي چې لیکنې وربانديې روښانه او برجسته وی او زده کوونکي ته له هر ځای څخه ښکاره شي. توره تخته ډېرې ګټې لري؛ مثلاً:

- د شاګردانو توجه هغو ټکو ته راګرځوي چې دوي ته تدریس شوي دي.
- تدریس په زړه پورې کوي.
- د مفهوم په روښانه کولو کې مرسته کوي.
- درس ته با معنا بڼه وربخښي.

## ۲. موډلونه:

د بصري کمکي موادو په لړکې موډلونه هم د اهمیت وړ دي چې په تدریس کې ترې ګټه اخلي.

لـه موډلونو څخه هغه وخت استفاده کوي چې د حقیقي شي خیالي منظر د احساس وړ نـه وي. امکـان لـري چـې دا موډلونه د ودانیو (تعمیرونو)، الوتونکو (پـرنده ګـان)، حیواناتو، د انسان د وجود داخلي اعضا او داسې شیانو شکلونه وښـي، خو دا باید په پام کې ونیول شي چې د موډل او اصل شي تر منځ داسې تناسب وي چې بې له کومې ستونزې یې هر څوک درک کړي.

پـه ښوونـه او روزنـه کې د موډلونو ګټې د توجه وړ دي. ځکه چې هغوي د یـوه واقعیـت مفهـوم توضیـح کـوي او د هغـو شـیانو پرځای استعمالیزي چې په فـزیکي توګـه زده کوونکو ته لاسته راوړلو قابلیت ونه لري، لکه د زړه موډل، د ښتورګو موډل او داسې نور.

## ۳. نقشې:

نقشـې معمولاً جغرافیایې ځایونه لکه هیوادونه، لوی و چې (براعظمونه) غرونه او داسـې نور شیان په ګوته کوي نقشې او د ځمکی کرې په جغرافیائی درسونو کې د دې له پاره پکاروي چې له درس څخه ابهام او پیچیدګي لرې شي.

## ۴. تصویرونه:

تصویرونه په حقیقت کې فوټو ګرافیک ښوونې دی امکان لري چې د تصویرونه له مرغانو، حیواناتو، خلکو، ځایونو، او ځینی نورو شیانو څخه اخستل شوي وي او یا له مجلو، ورځ پاڼو او جنتریو څخه راغونډ شوي وي او هم ځینې وخت د مشهورو شخصیتونو او مهمو ځایونو تصویرونو له بازار څخه رانیسی او په تدریس کې د درسي کمکي موادو په توګه تري ګټه اخلي. نو کله چې د هیواد نومیالي قهرمانان او تاریخي ځایونه د تصویرونو په وسیله ماشومانو ته په ټولګي کې وښودل شي د ماشومانو (د تفکر طرز) استعداد، بصیرت او د نظر وسعت انکشاف مومي. بناً ویلی شو چې د تصویرونو کارول په تدریسي بهیر کې ډېر اهمیت لري.

## ۵. چارټونه:

چارټونه بصري مواد دي چې ځینې واقعیتونه د کاغذ پر مخ په ګرافیکي او یا بصري شکل سره په منظمه توګه څرګندوي یعنی کېداي شي چې بېلابېل شیان د چارټونو په وسیله وښودل شي.

د مثال په ډول مونږ کولای شو چې د انسان د بدن بېلابیلې برخی د چارټ په وسیله په شکل کې ووینو او همدا ډول د خوړو مختلفی اجزاوې هم د

چارټ پوسیله ښودلای شو نوکه چارټ رنګه وي دا به ډېر اغېزمن او په زړه پورې درس ته با معنا بڼه وربخښي.

څرنګه چې د چارټونو اهمیت په تدریس کې ډېر زیات دې نو له دې کبله باید داسې پاک او صفا وساتل شي چې ژر خراب نه شي او هم باید دومره لوی وي چې د ټولګي له هر برخې څخه په آساني سره ولیدل شي.

## ۶. واقعي شیان:

واړه، واړه شیان لکه مڼه، هګي، کلي، چاقو او داسې نور شیان په واقعي شکل د تدریس په بهیر کې استعمالېږي چې حقیقتاً د نویو کلیمو په توضیح کولو کې ډېرې ګټورې وي، چې واقعاً د هغوي کارول درس په زړه پوري ګرځوي او د زیاترو جملو په زده کړه کې پوره مرسته کوي.

## ۷. ګرافونه:

ګرافونه هغه بصري مواد دي چې د کاغذ پر مخ عددي معلومات په ګوته کوي چې معمولاً د ریاضي او نورو مضامینو په تدریس کې تري کار اخلي. ګرافونه بېلابېل ډولونه لري لکه خطي، میلوي، دایره یي او تصویري ګرافونه.

ګرافونه په ریاضیاتو کې ډېر مهم رول لوبوي زیاتره درسي مفاهیم ځرګندوي کوم چې د یو شي تغیرات د بل شي د اغیز له امله رامنځته شي.

### ۸. فلش کارډ:

فلش کارډونه واړه نښتی کارډونه دي چې د مقوا یا کومې پنډې تکې څخه جوړېږي او اندازه یې (۴۵ × ۱۵) سانتي متره وي چې معمولاً د کلیمو د ښودلو له پاره پکار وړل کېږي. پدې کارونو کې د یوی کورني (غړو) نومونه، د مضمونونو نومونه، د میوو، سبزیجاتو او د ترانسپورتي وسیلو نومونه لیکل کېږي.

ښوونکی باید د تدریس په وخت کې نوموړي کارډ زده کوونکو ته وښئ بیا دې کاغذي کځوړه کې ځای په ځای کړي.

### ۱۰. نښې نښاني (Specimens) :

د تاریخ، جغرافیي او د زاړه مدنیت په تدریس کې د ځینو نمونه یې شیانو څخه لکه، پخواني خطونه، اسبابونه او داسې نور شیانو څخه په لوړه پیمانه گټه تر لاسه کوي.

### ۱۰. راډیو:

راډیو د سمعي موادو مهمه وسیله ده چې د هغې په وسیله د ژبې د زده کړې پروگرامونه تعقیبوي. داپروگرامونه د سهار له خوا په ټاکلي وخت کې خپرېږي. د ژبې د تلفظ او ویلو په برخه کې پوره مرسته کوي، سربېره پر

دې راډيـو مونـږ تـه د ورځـني ژوند په باب هر اړخېز معلومات راکوي او هم د مفـاهمې او پروپاګـنډې له پـاره يـو اغېزمـنه وسـيله ده. همدا راز د يو پلان شـوي درس د کيفيـت پـه لوړولـو کـې ارزښتناک رول لوبوی. او هم په ټولګي کې د هغې کارول ډېري ګټې لري.

## ۱۱. ټيپ ريکارډر:

ټيـپ ريکـارډر د آواز د ثبـتولو وسـيله ده چـې د زده کړې په بهير کې ډېر ګټـور دی. خصوصـاً د ژبـې پـه زده کـړي کـې زيـات ارزښـت لـري. د مهمـو شخصيتونو ارزښتناکه ويناوی د ټيب ريکارډر په وسيله ثبتېږي او نورو خلکو ته اورول کېـږي او هـم د زده کوونکو له پاره د انګليسي تيار پروګرامونه ثبت او په ټولګي کې ترې ګټه اخلي همدا ډول د شاګردانو له پاره ښه موقع برابرېږي چې خپل آوازونه ثبت کړی او بيايې واوروي.

## ۱۲. ټلويزيون:

ټلويـزيون د مهمـو سـمعي او بصـري کمکـی موادو له جملي څخه شمېرل کېـږي چـي د راډيو او ټيپ ريکارډر په نسبت زيات ارزښت لري. ځکه چې پـه ټلويـزيون کې د يوه پلان شوي کار اجراآت په يوه وخت کې هم ليدلی او هـم کتـلی شو. بله دا چې مونږ د ټلويزيون په وسيله ټولنېز، سياسي، د ژبې

د زده کړې پروګرامونه او هم له دې سره جوخت خبرونه، هم تعقیبولای شو. سربېره پر دې له ټلويزيون څخه په کورونو او ټولګيو کې هم په پراخه پيمانه ګټه اخستله کېږي. يعنې مختلف مضامين لکه فزيک، کيميا، بيولوژي او داسې نور مضامين چې په ټلويزيون کې تدريس کېږي شاګردان کولای شي د هغوي د عملي تدريس څخه پوره استفاده وکړي. نو ويلای شو چې ټلويزيون د ښوونې او زده کړې يو فوق العاده نوې وسيله ده چې د هغې په واسطه ښه زده کړه کېږي. د شاګردانو تجاربو ته توسعه ورکوي او هم يې ښې زده کړې ته هڅوي.

بله مهمه خبره داده چې په ټلويزيوني پروګرامونو کې زده کوونکي دومره د ښوونکي تابع نه دي څکه چې هغوي کولای شي بي د ښوونکي له مرستې او لارښوونو څخه زده کړه وکړي. په عادي حالت کې ماشومان هم له ښوونکي څخه تعليم زده کوي خو هغه تعليم چې په ټلويزيون کې د هېواد د مجربو او لايقو ښوونکو له درسي پروګرامونو څخه تر لاسه کېږي په پراخه پيمانه ارزښت لري نو له دې کبله ويلای شو چې ټلويزيون يوازنې وسيله ده چې د ښوونې او روزنې پروګرامونو له پاره آسانتياوې برابر وي او ډېر ګټور نقش په کې لري.

### ۱۳. ویدیو (Video):

ویدیـو هم د تعلیم یوه مهمه وسیله ده چې د ښوونې ځانګړې پروګرامونه لکه ښوونېـز مهارتونـه، د نظـریو نمایشـي پروګـرامونه په عملي توګه په شکلونو کې ښـوولی کېـږي، پـه ښـتولو کـې هم مهم رول لوبوی او هم پدې وسیله د مشهورو متخصیصـینو له خـوا تعلـیمی مسـلکي معلومـات مستقیماً زده کوونکو ته وړاندې کیدای شي. بناً ویلای شو چې ویډیو یو ګټوره تعلیمي وسیله ده.

### ۱۴. کمپیوټر (Computer):

کمپـیوتر د تعلـیم یـو مـډرن عصر وسیله ده چې په لوړه پیمانه د هر مضمون په زده کړه او تدریس کې ترې کار اخستل کېږي. که لږ ځېر شو، په ټلویزیوني زده کـړه کـې زده کوونکـي ډېـر وخـت سپما کوي او هم د ساینس مضمونونو د تدریـس له پـاره ډېـر ګټـور دي. کـه لږ پام وکړو، دا به راته څرګند شي چې د کمپـیوتر ټـول پروګـرام د (C.D) پـر دایـریې ثبتېږي او د ټلویزیون په وسیله مینه والو ته وړاندې کېږي.

د مـثال پـه ټوګـه: برتانوي دایره المعارف (Encyclopedia Britannia) چې ۳۲ ټوکـو کـې چـاپ شـوی او هـر ټـوک یې له ۲۰۰۰ څخه زیاد مخونه لري یوازې کمپـیوتر پـه درې ډسـکو (Discs. CDS) کې ځای په ځای شوي دي او په تعلیمي چارو کې ترې ګټه اخلي.

همدا ډول ژبنې قاموسونه چې د ماشومانو د غرېدلو مهارت تقویه کوي د ژبنې په زده کړه کې ډېره مرسته کوي او سربېره پر دې مونږ د ټلویزیون په وسیله د تاریخي مشهورو پوهانو بیانې هم اورو او هم یې په سترګو وینو او هم د زده کړې یوه بله مهمه او مدرن وسیله انترنیت دی چې له کمپیوتر سره یو ځای استعمالېږي. د انترنیت په وسیله مونږ د هغو کتابونو مفهوم چې د هېواد څخه د باندې دي او ورسره ورځنی نظریې او مفکوري او داسی نور کارونه زده کوو. او هم کمپیوتر له ښوونکي څخه د زده کوونکي تابعت کموي. په دې معنا چې زده کوونکي بی له ښوونکي څخه زده کړه کوي او ګام په ګام پر مختګ کوي خو سره له دې ټلویزیون یو ډېر قیمتي درسي مرستندوی دی مګر د هر زده کوونکي رسیدل ورته ګران دي.

## ۱۵. فلم (Film):

فلمونه ارزښتناکه سمعي او بصري کمکي مواد دي چې د هغوي په وسیله د مضمون موضوع ګاني (محتویات)، ډېر مغلق مهارتونه او داسي نور شیان په ښه توګه تدریس کېداي شي.

ښوونکي باید د فلم تر وړاندی کولو له مخه د فلم مقدمه ووایي او بیا هغه مشکلې کلیمې او جملې توضیح او ضروري مباحثي پرې وکړي.

تعلیمي هدفونه د نصاب په دېزاین کې یو ګټور او ارزښتناکه رول لوبوي. ځکه چې هغوی د (پلانګ، نهایي اهدافو د رسیدني، د مضمون د موضوعاتو د ټاکلو او محتویاتو د نظم او ترتیب) له پاره ډېره ضرور دي. نوموړي اهداف باید ملي ارزښتونه منعکس کړي د ملي غوښتنو او د ټولنې د ضرورتو پربنسټ ولیکل شي.

## ب. محتویات:

محتویات د نصاب دوهم ارزښتناک عنصر دی. له محتویاتو څخه مطلب د مضمون موضوعات دي چې داهم د یوې ټولنې د کلتور په حفاظت، انتقال او ترقي کې ګټور رول لوبوي. د نصاب مسلکي او ماهر کسان د ټولنې غوښتنو سره سم درسي محتویات (د مضمون موضوعات) ټاکي چې د نویو کشفیاتو او اختراعاتو په صورت کې د تغیر وړوي او هم په کې د تدریس اصول مراعات شوي وي.

یعنې:

(I) له ساده څخه مغلق ته.

(II) له آسان څخه مشکل ته.

(III) له مجهول څخه معلوم ته.

## ج. د تدریس میتودونه:

مونږ پوهېږو چې یو تعلیمي نصاب د دې له پاره ډیزاین کېږي چې د ماشومانو په سلوک او کردار کې یو مثبت تحول راولي. خو په دې هم باید پوه

## ۱٦. اور هیډ پروجیکټور (Over head Projector):

پروجیکټور یو ماشین دې چې د هغه په وسیله لیکلي یا ترسیم شوي مواد په شفافو تختو کې روښانه کېږي. د استعمال میتود او کړن لاره، دا ډول ده لومړي ښوونکي درسي موضوع په شفاف شیټ باندي لیکي او بیا یې د پروجیکټور په وسیله پر دیوال یا تخته باندي په څرګندډول ښي چې زده کوونکي ترې په زړه پورې ګټه واخلي.

## د پروجیکټور ښېګڼې:

الف: د درسونو د روښانو کولو له پاره کارول کېږي.

ب: د زده کوونکو د غټ ګروپ د تدریس له پاره ګټور دي. او هم له زیر مې څخه کېدای شی په آینده پروګرامونو کې کار واخلی.

ج: هغه شیتونه چې په پروجکټور کې کارول کېږي ښه په آسانی سره لاس ته راځي. اوله پورتنیو ښېګڼو سربېره پروجکټور د درسي کمکي موادو یو پر مصرفه ماشین دی چې کارول یې په ټولو ښوونځیو کې ډېره بودیجه غواړي.

## ۱۷. سلایډ پروجکټور:

د دې ډول ماشین په وسیله واړه سلایدونه پر تختې باندي روښانه

کوي. ښوونکي پر دې سلایډونو باندې ځینې جملې لیکي او یا تصویرونه ځینې وباسي او بیا یې پر تخته باندې د زده کوونکو د لیدلو له پاره د پروجکټور په وسیله روښانه کوي. دا سلایدونه په حقیقت کې د زده کوونکو د معرفت طاقت او د کلمو زېرمې ته انکشاف ورکوي.

## ۱۸. اوپیک پروجکټور، فلم سټر پیپونه (Episcopal or opaque Projector)

د دې ډول پروجکټور په وسیله مونږ تصویرونه، غیر شفاف شیان په پرده کې ښولای شو او هم د نوموړي پروجکټور په وسیله کولای شو د یو کتاب شکلونه، یا ګرافونه او داسې نور شیان د پردې پر مخ وښیو د دې پروجکټور غټ نقص دا دی چې د کارولو په وخت کې آواز تولید وي او هم هغه تصویرونه چې له کتاب څخه مستقیما په پرده کې ښي ښه روښانه نه بریښي.

## ۱۹. فلم سټریپ:

فلم سټریپ د بې غږه متداوم حرکت تصویر ښيئ. د دې پروجکټور په وسیله زده کوونکي د تعلیمي پروګرام په بېلابېلو پړاونو کې مشاهده کېداي شي، یعني زده کوونکي او ښوونکی مباحثې کوي او هم د زده کوونکو ژبه نیزې مناقشې پراختیا مومي. ښوونکی باید پلان شوي درسونه تهیه او فلم تري ېک کړي او بیا دې زده کوونکو ته وښیي. د ضرورت په وخت کې دې د دوهم ځل له پاره تکرار کړي.

## ۵. د ارزان بیه موادو په جوړولوکې د ښوونکي دنده :

په پر مخ تللي هېوادونو لکه امریکا، جاپان، انګلینډ او داسې نورو کې په ښوونه او روزنه باندې ګڼ مصرف کوي او په کلنۍ بودیجه کې د دې اساسي هدف له پاره د بودیجې لویه فیصدي تخصیص ورکوي نو ځکه هغوی ډېر موډرن (عصري) مرستندوي مواد په تولګیو کې کاروي مګر هغه هیوادونه چې د پر مختیا په حال کې دي، لکه: افغانستان، پاکستان او داسې نور هغوی کولای شي چې د درس قیمتي کمکي موادو له عهدې څخه ووځي نو لدې کبله د اقتصادي پرابلمونو په درلودلو سره د دي توان نلري چې د بودیجې ګڼ مقدار په ښوونه او روزنه باندې ولګوي.

بناً د داسې هیوادوالو له پاره لازمه ده چې خپل درسي کومکي مواد له ارزان قیمته محیطي موادو څخه تیار او خپل ضرورتونه پرې حل کړي.

پدې اړوند د ښوونکي ونډه باید هیڅکله له پامه ونه لوېږي که ښوونکي پدې برخه کې ښه وروزل شي. نو کولای شي چې په خپله درسي کمکې مواد له ارزان بیه محیطي موادو څخه تیار کړي. ښوونکي ته څنګه روزنه ورکړل شي؟ هغه باید داسې وروزل شي چې څنګه ارزان بیه مواد تاکل کېږي؟ او زده کوونکي د دې موادو په تیارولو کې پوره ونډه واخلي.

## د سمعي او بصري موادو د کارولو قوانین:

### ۱. د ټاکنې قانون:

د درسي کومکي موادو استعمال لومړنی قانون دا دې چې لومړی موا د باید د زده کوونکو د ضرورتونو او د تدریسي هدفونو په اساس انتخاب شي، همدا راز درسي مواد باید د ښوونې او روزنې د عمومي هدفونو او تدریسي هدفونو په رڼاکې د ماشومانو سویې او عمر سره سم وټاکل شي همداراز د نوموړیو موادو په هکله د ماشومانو علاقه مندي، تمایلات او روشونه په پام کې ونیول شي او هم نوموړي مواد داسې تیار کړای شي چې په درسته توګه د حقیقي شیانو نمایندګي وکړي. که د پورتنیو ټکیو په نظر کې نیولو سره نوموړي مواد برابر شي نو تدریس به زده کوونکو ته بې له شک او تردید څخه په زړه پوري شي.

### ۲. آماده ګۍ قانون:

د دې قانون په اساس باید تدریسي کومکي مواد په ډېر غور او پوره مهارت سره له ارزان بیه محیطي مواد څخه جوړ شي. د داسې مواد و په جوړولو کې باید ښوونکي ته پوره روزنه ورکړل شوي وي او هم زده کوونکي ورسره پوره مرسته وکړئ.

## ۳. د فزيکي کنټرول او ساتنې قانون:

د دې قـانون پـه اسـاس بـايد درسـي کومکي مواد په مناسبه توګه تنظيم او وروسـته لـه استعمال څخه دې په محفوظ ځای کې وساتل شي تر څو بيکاره او خراب نشي او هم د اخستني په وخت کې ښوونکی ته کوم مشکل توليد نه کړي.

## د مناسب وړانديز قانون:

درسي کومکي مواد بايد په يوه مناسبه طريقه زده کوونکو ته توضيح او تشريح شي.

ښوونکـي بـايد د ضرورت په وخت کې له نوموړيو موادو څخه کار واخلي او بي لـه دي نـه بـه د هغـوي استعمال بی فايده وي. ښوونکي بايد په ياد ولري چې تدريسي مواد د تعليمي هدفونو تر لاسه کولو وسيلي دي. بناً په ضمنی توګه دې د هر درس له حالت سره سم وکارولې شي.

# د اتم فصل په اړه ترتیب شوي

# چارټ

# د زده کړې مواد

## د سمعي او بصري موادو اهمیت او خصوصیات:



# د اتم فصل په اړه پوښتنې

۱. سمعي او بصري څه معنا لري؟ سمعي او بصري مرستندوی مواد تعریف کړئ.

۲. د سمعي او بصري کومکي موادو اهمیت څرګند کړئ.

۳. چارټونه او نقشې د کومو مضامینو په تدریس کې اغېزمن وي؟

۴. د تختې کارول څه ګټې لري؟

۵. د سمعي او بصري کومکي موادو په استعمال کې باید کومو ټکیو ته پام وکړو؟

۶. د درسي کومکي موادو استعمال له پاره چینایي عالم څه نظر ورکړی او نور پوهان په دې هکله څه وایي؟

۷. په ښوونه او روزنه کې اورهیډ پروجکټور څنګه کاروئ؟

۸. په ارزان بیه کومکي موادو کې د ښوونکي ونډه څه ده؟

# ماخذونه


Author: Abdul Salam Khosary .1
Modern Approach to Teaching
FOR
B.ED
University of Peshawar

Author: Murad Ali .2
M.A.English B.E.D
Perspective of Education and Contemporary

B.ED
University of Peshawar by

Author: Murad Ali .3
Curriculum and Instructions
B.ED
University of Peshawar

Education Program .4
T.T.C
Solidarity Afghanistan
Belgium

B.E.F.A.R.e .5

Basic Education For Afghan Refugee

د ښوونکي عمومي لارښود




مرتب: محمد عالم "سالمي" .6

د ښوونکو د مسلکي زده کړې له پاره

تربيتي روانشناسي

د افغانستان د تعليم او تربيتي اداره .7

د ښوونکو تربيوي سيمنار

تبع و نگارش از: محمد صديق "مصلح" .8

روان شناسي اطفال و جوانان

Children and youth Psychology



شو، چې د دې هدف تر لاسه کول، بې‌له ښوونکي څخه امکان نلري. ښوونکی هغه عامل دی چې د تعلیي نصاب د هدفونو په تر لاسه کولو کې مهم رول لوبوي.

په کار دي چې زموږ ښاغلي ښوونکي ځانونه د تدریس په میتودولوژی ښه پوه کړي چې ټاکلي اهداف آسانه تر لاسه شي.

## د. ارزیابي:

ارزیابي هم د تعلیمی نصاب یو مهم عنصر دی چې په عام او خاص ډول د هر تربیتي پروګرام له پاره ډېر ضروري بریښي. څرنګه چې د تعلیمي نصاب د پرمختیایو ډنیا میکي بهېر، په ګوته کوي نو د هغه د لا ښه والي له پاره باید په پرلپسي توګه ارزیابي تر سره شي.

ارزیابي د تعلیمی نصاب له ماهرینو سره ښه مرسته کوي. یعنې د نصاب په باب داسې پوره معلومات راټولوي چې د هغو په رڼاکې د لومړي نصاب اغېزمنتوب ښه او بد اړخونه په څرګند ډول معلومیداې شي.

# ۵. د لومړي فصل په اړه ترتیب شوی

## چارټ



د تعلیمي نصاب تعریف
د تعلیمي نصاب زوړ مفهوم
د تعلیمي نصاب نوی مفهوم
د تعلیمي نصاب ځینې تعریفونه:
د تعلیمي نصاب ساحه (Scope)
د تعلیمي نصاب جوړښت
د تعلیمي نصاب ډیزاین(طرح )
د تعلیمي نصاب انکشاف
د تعلیمي نصاب اهمیت
د تعلیمي نصاب ونډه او ونډه

د ماشوم هراړخیز انکشاف
د ماشوم د اساسي مهارتونو انکشاف
د ډیموکراتیک ژوند انکشاف
د ښه هیوادوال روزل
د تعلیمي نصاب کلتوري مفهوم
د ژوند د معیار لوړول
د ملي توامیت انکشاف

د ټولنې عصري کول
د تعلیمي نصاب عناصر
هدف
محتویات
د تدریس میتودونه
ارزیابي

# ٦. د لومړی فصل په اړه پوښتنې

١. د تعلیمي نصاب زوړ مهفوم او نوی مفهوم څه فرق لري؟

٢. جې- اف- کر J.F.Kerr تعلیمي نصاب څه ډول تعریف کړی دی؟

٣. د اکسفور د عالي ډکشنري د نصاب کلمه څه ډول تعریف کړی ده؟

۴. د تعلیمي نصاب جوړښت او ډیزاین څه فرق لري؟

۵. د تعلیمي نصاب اهمیت وښیه او دنده تشریح کړئ.

٦. د تعلیمي نصاب کلتوري مفهوم څه شی دی؟

٧. د ټولنې د عصري کولو له پاره باید تعلیمي نصاب څه ځانګړتیاوې ولري؟

٨. د تعلیمي نصاب مهم عنصرونه ووایاست.

# دوهم فصل

## ۱. د تعليمي نصاب اساسات

د تعليمي نصاب درې ارزښتناکه اساسات چې فلسفي، سايکالوژيکی او اجتماعي اساسات بلل کېږي، په لاندې ډول ترکتنې لاندې نيسو.

### الف- د تعليمي نصاب فلسفي اساسات:

دا هغه عوامل دي چې پر تعليمی نصاب باندې تاثير کوي.

فلسفه(Philosophy) يوه لاتيين/يوناني کلمه ده چې په اصل کې فلسفه "حکمت سره مينه" معنا ورکوي خو دا اصطلاح د يوه شمېر عالمانو له خوا په بېلابېلو معنا وو استعمال شوې ده. ځينې وايي چې فلسفه (له علم سره مينه) ده او ځينې يې د "علم تعقيب" يا د "حقيقت پلټنې" په معنا استعمالوي. خو د اکسفوړ د عالي ډکشنري دعلم پلټنې، په طبيعت پوهيدنې او د جهان او انسان ژوند مفهوم په توګه تعريف کړې ده.

فلسفه په نظري ډول هغه تغيرات ځيري چې د يوه فرد په سلوک او کردار کې رامنځته کېږي.

د فلسفې نظري مفکوره د تعليمي نصاب په وسيله عملي بڼه غوره کوي.

يعنی دتعليمی هدفونو، مضمونونو، د زده کړې، د تجربو، لاربنونو او ارزيابی

لـه پـاره مواد برابر وي. که د فلسفي اصطلاح يوازې په ښوونې او روزنې پورې محـدود کـړو نـو هغـه فکـتورونه چـې په مستقيم او غير مستقيم ډول پر تعليمې نصاب اغيز لري په لاندې ډول دي:

## _ ملي ايډيالوژي (National ideology):

هـر انسـان پـه خـپل ژوندکـې ځـانګړې مفکـورې او تصـورات لري چې د هغوی په رڼا کې فعاليتونه کوي.

پـه تولنـيز شکل د يوه ملت ايډيالوژي د هغوی ملي ايدیالوژي وي چې په هغـې کـې د يوه ملت ملي دودونه، عقيده يي ارزښتونه او د هغوی ټول قوانين شامل دي چې د هغوی په رڼاکې تعليمی نصاب جوړېږی.

څـرنګه چـې، زمـوږ د ګـران افغانستان ايډيالوژې اسلامي ده نو بايد چې تعليمي نصاب يې د اسلامي معتقداتو او ملي ارزښتو پر بنا جوړ کړاي شي.

## - د نصاب فلسفه(Philosophy of curriculum)

د ښوونـې او روزنـې ماهـران د ښوونـې او روزنې او تعليمي نصاب په باب بېـلا بېلـې فلسـفي نظـريې لري. ځينې د ماشوم د ټولنيز شخصيت، و دې ته ترجـيح ورکـوي او ځيـني وايـې چـې پـه تعلـيمي نصاب کې بايد د ماشومانو خواهشاتو او علاقه منديو ته په ځانګړی توګه پام وشي. دا دواړه فلسفې نظريې په څرګندډول د تعليمی نصاب پر کيفيت باندې تاثير کوي.

- د مضمون فلسفه (Philosophy of Subject)

هر مضمون ځانته فلسفه او ضرورتونه لري. د مثال په توګه، که د ژبې د تدریس هدف د تاریخ یا اقتصاد د تدریس له هدف سره پرتله کړو، نو ډېر توپیر لري. سربېره پر دي د هر مضمون موضوعات مختلف خصوصیات لري.

بناً د تعلیمي نصاب د اهدافو په فورمول بندۍ کې باید پورتنیو ټکیو ته صادقانه توجه وشي. تر دې پورې چې نوموړی تعلیمی نصاب د وخت له تیریدو سره سم پراختیا ومومي.

## ب- سایکالوژیکي اساسات:

سایکالوژي یا اروا پوهنه هغه علم دی چې انساني فطرت او کردار تشریح کوي. دي علم ثابته کړېده چې د مختلفو انسانانو فزیکي، ذهني سویې سره توپیر لري. د دې توپیر له امله د بېلا بېلو افراد و علاقه مندي، ذوقونه، تمایلات، او روشونه، خصوصاً د هغوی د زده کړی جریانات یو له بله سره توپیر لري.

څرنګه چې تعلیمي اروا پوهنه هغه تغیرات بیانوي چې په یوه ماشوم کې له پیدایښت څخه تر ځوانۍ پورې په پر له پسې توګه دودې په مختلفو مراحلوکې بېلا بېلې بڼې غوره کوي، بناً د ښووني او روزنی ماهران د تعلیمی نصاب په لیکلو کې دا ټول حقایق په نظرکې ونیسي.

## ۳. ټولنيز او کلتوري اساسات:

ټولنيز او کلتوري ارزښتونه د تعليمی نصاب د انکشاف مهم اساسات دي. ځکـه چـې هـره ټولـنه ځـانګړی ستونزې او ضرورتونه لري. يعنې د يوې امن لـرونکی ټولـنې مـلی ارزښـتونه د هغې ټولنې له ارزښتونو سره چې امن په کې نشـته بالکل متفاوت وي. همدا ډول، د يوه پر مخ تللې هېواد ضرورتونه د هغه هېـواد د ضـرورتونو پـه شان نه وي چې د پر مختيا په حال کې دي. دا ټول هغه ټولنيز عوامل دی چې په څرګند ډول د يوې ټولنې پر تعليمي نصاب اثر کوي.

کلـه چـې يـو نصـاب ډيـزاين کېـږی، بـايد لـه داسي ميتودونو څخه کار واخستل شي چې د يوې ټولنې هر اړخيز دريځونه په کې د تطبيق وړ وي.

# لومړی فصل

## ۱. د تعليمي نصاب تعريف او مفهوم:

د اکسفورډ عالي ډکشنري نصاب دا ډول تعريف کړی دی: " هغه مضامين چې په ځانګړي کورس يا کالج کې مطالعه يا وښودل شي نصاب بلل کيږي."

مګر دا پوره تعريف نه دی ځکه چې په دې تعريف کې نصاب، څو محدود مضامين لکه انګليسي، رياضي، ساينس، پښتو او داسې نور احتوا کوي. حال دا چې د نصاب کلمه په پراخه پيمانه د ماشوم ټول هغه فعاليتونه او تجربې ښيي چې ماشوم يې د ښوونځي له لارښودلو سره تر لاسه کوي. د نصاب په باب دوه نظريې دي چې يوه يې نوې او بله يې زړه ده د دې نظريو په وسيله د نصاب خصوصيت او مفهوم په واضح ډول څرګنديږي چې لاندې يې په مفصله توګه تر کتنې لاندې نيسو.

## د تعليمي نصاب زوړ مفهوم:

د تعليمي نصاب په زاړه سيستم کې به زده کوونکو له ښوونکي څخه علم د يادولو، لوستلو او مشق کولو په وسيله زده کاوه. يعنې ښوونکي به يو ګټور حقيقي معلومات زده کوونکو ته توضيح او تشريح کول او هغوي به د ښوونکي له غوښتنې سره سم زده کاوه. څو عملي اړخ يې نه درلود. په خاص

# ۲. د دوهم فصل په اړه ترتیب شوی چارټ

د تعلیمي نصاب اساسات(فلسفي، سایکالوژیکي اجتماعي او کلتوري اساسات)




## ۳. د دوهم فصل په اړه پوښتنې:

۱. د تعلیمي نصاب فلسفي اساسات او سایکالوژیکي اساسات څه فرق لري؟

۲. فلسفه (Philosophy) څه ډول یوه کلمه ده او د یوه شمېر عالمانو له خوا په څه معنا کارول شوېده؟

۳. ملي ایدیالوژی څه ته وایې ؟

۴. اجتماعي او کلتوري اساسات څه دی؟

۵. د تعلیمی نصاب فلسفه څه قسم فلسفه ده تشریح یې کړئ.

۶. د مضمون فلسفه څه مفهوم لري؟

# دريم فصل

# د تعليمي نصاب ډولونه

## د تعليمي نصاب ډولونه:

تعليمي نصاب زيات ډولونه لري. مونږ يې دلته يو څو نمونې ګورو:

### الف. پر مضمون متکي نصاب(The Subject based curriculum):

دا يو عنعنوي قديمي نصاب دی چې د مضامينو په حساب ديزاين شوی وي. په دا ډول تعليمي نصاب کې دعلم مختلفې څانګې د مضمونونو په شکل لکه تاريخ، ژبه، رياضي او داسې مضامين په بېلا بېلو پړاونوکې د زده کوونکی له سويې سره سم لوستل کېږي. د مثال په توګه سايکالوژي، اقتصاد او نور اجتماعي مضمونونه د شاګردانو له پوهې سره سم په منځنيو او ثانوي دورو کې تدريس کېږي په دې ډول تعليمي نصاب کې، د لمړنی ښوونځي د زده کړی له تجربو څخه کار اخلي او د ښوونې او روزنې مختلف اړخونه د څانګړيو مضامينو په توګه مطالعه کوي. خو د هغه مضمون موضوعات به اساس وګرځول شي چې د ښوونځي ښوونيزو او روز نيزو هدفونو ته رسيدلی وي.

په دې ډول تعلمي نصاب کې د ښوونې او روزنې مواد په واحد شکل نه بلکه

په مجموعی ډول مختلف مضامین احتوا کوي او له مسؤلینو څخه دا هیله کوي چې د دې ټولو مضامینو پروګرام د ۱۰ یا ۱۲ کالونو په موده کې تکمیل شي.

بلـه دا چې په دې نصاب کې د تدریج یاد مراتبو د سلسلې قانون (لـه آسان څخه مشکل تـه) او داسې نـور پـه پام کې نیول شوی او د ښوونکی رول په کې د اهمیت وړ وي.




## " ښیګڼې ":

پر مضمون باندی متکي تعلمیي نصاب لاندې ښېګڼې لري:

۱. پـه دې تعلـیمی نصاب کې تعلیمی درسي مواد په سیستماتیکه طریقه ترتیب شوي دي، چې په آسانی سره د یوه فرد ذهني طاقت ته انکشاف ورکوي.

۱. په دې نصاب کې د " له آسان څخه مغلق ته " قانون د زده کوونکو د سایکالوژي (اروا پوهنې) له مخی په مخ بوول کېږي.

۳. ښوونکـی د مضـمون یـوه بـرخه شـاګردانو تـه د تدریـس لـه پاره په اسانی آماده کولای شي.

۴. سمعي او بصري کمکی مواد په آساني سره اټکل او تر لاسه کېداې شي.

۵. هر مضمون ته په آسانی سره وخت ورکول کېږی.

٦. له ضرورت سره سم په یوه مضمون کې تغیرات رامنځته کېدای شي.

## نیمګړتیاوې:

(I) پـر مضـمون بـاندی مـتکي نصـاب کـې ښوونه او روزنه په ځانته واحدونو وېشـل شـوې ده. حـال دا چـې ښوونـه او روزنـه کـل دی چـې په فرعي واحدونو تقسیمیداې نه شي.

(II) پـه دې ډول نصـاب کـې د زده کوونکـو علاقـه او فعالیـتونه لـه پامه غورځول کېږي.

(III) دا نصـاب د ماشـوم پـه هراړخـیز انکشـاف کـې ښه ګټور نه ثابتیږی. ځکـه چـې ښوونکي په ټولو مضامینوکی پوره روزل شوی نه دي. بناً، هغـه د داسی یو مضمون مسؤولیت پر غاړه نه اخلي چې دده له علمي ساحې څخه بهر وي.

(IV) څـنګه چـې مضـامین وخت په وخت زیاتېږي نو ورسره جوخت د زده کوونکـو عـلمي سطحه هـم لوړېـږي. نـو له دی کبله د هر یوه مضمون تدریس په ښوونځی کې څه مشکلات رامنځته کوي.

د دې ډول تعلـیمي نصـاب غـټ عیـب دادی چـې د زده کوونکـي پـر ځای ښوونکی په تدریس کې د توجه وړ ګرځی:

## ب_ پر ښوونکي متکي تعليمي نصاب:

په دې تعليمي نصاب کې ښوونکی د توجه مرکز وي چې د نصاب په پراختيا او د زده کوونکو په پر مختګ کې ډېر مهم رول لوبوي.
ښوونکی د ټولګی په فعاليتونو کې فعاله برخه اخلي. د مثال په ډول، هغه درسي مواد، د تدريس ستراتيژی، سمعي او بصري کمکي مواد او داسی نور شيان تهيه کوي نو هر تصميم چې د تعليمي نصاب په اړه نيول کېږي، بايد ښوونکی په کې ګډون وکړي او خپل مسؤولانه رول په لاندې ډول ادا کړي:

### (I) د تطبيق کوونکي په صفت:

د ښوونکې رول د تطبيق کوونکي په حيث دادې چې بشپړ شوي تعليمي نصاب پر هر حال کې وکاروي. او خپل مسئوليت د نوموړي نصاب په تطبيق کې تر سره کړي.

### (II) دتوافق ورکوونکي په صفت:

د ښوونکي رول د " توافق ورکونکې" په حيث له تطبيق کوونکي سره دومره تفاوت نه لري. ښوونکی دې ته آماده کوي چې نوموړی نصاب ومني او تطبيق يې کړي.

## (III) د انکشاف ورکوونکي په توګه:

د ښوونکو دنده د پروګرام د پر مخ بوونکو په صفت دا ده چې د تعلیمي نصاب په پراختیا کې فعاله برخه واخلي. د هغه له ونډې څخه دې سترګې پټې نه شي. ځکه چې ښوونکې یوازنې تن دی چې زده کوونکو ته درس ورکوي. بناً د تعلیمی نصاب په جوړښت کې دې له هغوی څخه په ډاډ زړه کار واخستل شي.

## (IV) د ریسرچ کوونکي په توګه:

د تعلیمي نصاب د پراختیا له پاره ریسرچ ډیر ارزښت لري. ځکه چې د ریسرچ ماهران کولای شي د ټولنې د ضرورتونو په اساس په تعلیمي نصاب کې بدلون راولي. بناً، هغوی باید د تعلیمي نصاب په پروسه کې فعاله برخه واخلي چې نوموړی نصاب داسې تجدید نظر او ارزیابي کړي چې د هیوادوالو په ګټه په کې یو مثبت تحول راشي.

## ج ـ پر زده کوونکي متکي نصاب:

پدی نصاب کې زده کوونکي د توجه مرکز وي. هغوی ته ډېر اهمیت ورکول کېږي. زیاتره د ښوونې او روزنې متخصیص او اروا پوهان دا ډول نصاب خوښوي.

روسیو(Rousseau) چې د ښوونې او روزنې متخصص دی وايي:

" ښوونه او روزنه باید د ماشوم له ذوق او علاقې سره برابره او متناسب وي. ماشـوم بـاید آزاد پـرېښوول شي او ډموکراتیک محیط ورته مهیا شي. د ماشوم‌له علاقه مندیو او تمایلاتو سره برابر نصاب دې ډېزاین شي"

پـر شـاګرد مـتکي نصاب په دې تیګار کوي چې د هر ماشوم ذهن پراختیا وموـمي د هغوی هدفونه، علاقه مندي ګانې او ضرورتونه په نظرکې ونیول شي پـه دې هکلـه د ډیـوز کنټربیوشـن(Dewey's Contribution) ارزښتـناکه مرسـته د یـادونې وړ ده. نومـوړی څـو پروګـرامونه چـې پـر شـاګرد متکي نصاب باندې استوار وو ترتیب کړل.

پـر دې پروګـرامونو کـې د ماشوم ذهني، فزیکی، ټولنیز، روحي او معنوي خاصـیتونه او ضـرورتونه تـر عـلمي څېـړنې لانـدې ونیول شول. په نتیجه کې څرګنده شوه چې پر شاګرد متکي نصاب لاندې ټکي احتوا کوي:

(I) باید په طبعي ډول د ماشوم آزادي پراختیا ومومي.

(II) ښوونکی د یوه لارښود په حیث رول ولري.

(III) په هر کار کې چې د ماشوم علاقه مندي ډېره وي باید تشویق او ترغیب شي.

(IV) په عملي ټوګه د ماشوم پر مختګ دې ترکتنې لاندې ونیول شي.

(X) د ښوونځـي او د شـاګرد د کورنـي تـر مـنځ دې کلکـې اړیکې وي چې د ماشوم د ورځیني ژوند ټول ضرورتونه پوره کړي.

# د "پر ماشوم متمرکز نصاب" خاصیتونه

(I) پـه دې ډول نصـاب کـې ماشـوم تـه زیات اهمیت ورکول کېږي او هغه د توجه مرکز ګڼل کېږي، چې دا یو منل شوی طبعي روش دی.

(II) د ښوونـیزی او روزنـیزی زده کـړی پـه پروسـه کـې ماشـوم ته فعالیتونه ورکول کېږي چې کار پری وکړی.

## پر فعالیت متکي نصاب:

فعالیت د ماشوم طبیعي غوښتنه ده. هغه غواړي چې په خپله فکر او فعالیـت وکـړي. فعالیت د زده کړې په زړه پوری تشویقي وسیله ده. کله چې تعلیمي مواد د فعالیت په شکل ترتیب وومي نو دې ډول نصاب ته " پر فعالیت متکي نصاب" وایي.

پـه دې ډول نصـاب کې د زده کړې مواد د فعالیتونو په وسیله په عملي توګه تجـربه کېـږي یعـنی شـاګردان د تجـربو پـه اساس معلومات تر لاسه کوي. نودې ډول نصـاب نـه د تجـربو تعلـیمي نصـاب هـم وایـي. لکه څنګه چې دا نصاب د شـاګرد پـه طـبعي خصوصیتو نو متکي دی نو د زده کړی مواد یې هم د ماشوم له خوښـې او علاقـې سـره سم تـاکل کېـږي او د ښوونکي په لارښود کې ورته ځای

ورکـول کېـږي. په دې نصاب کې زده کوونکي يوازې اورېدل نه کوي. بلکه د زده کـړې پـه بهېـر کـې پـه عملي توګه ګډون لري. د دې ډول نصاب له پاره د پروژه يـې ميـتود تدريسي طـريقه بـاالکل مطابقـت لري نو کله يې پروژه يې نصاب هم بـولي. پدی نصاب کې نه يوازی فزيکي فعاليتونه بلکه ذهني فعاليتونه هم تر سره کېږي. چې په لاندې ټکوکې يې ځينې ښېګڼې او نيمګړتياوې ښودل شوي دي.

## ښېګڼې:

(I) ځـرنګه چـې " پرفعاليـت متکي نصاب " د ماشومانو له خوښی او علاقې سره سم ترتيـب شوی او ښوونيز او روزنيز پروګرامونه يې د زده کوونکو پـه علاقـه مـنديو مـتکي دي نـو ځکـه ماشـومان کـولای شـي خپله ټوله توجه د زده کړی خواته واړوي.

(II) پـه دې ډول تعلـيمی نصـاب کـې ماشومان آزادانه فکر کوي او د ښوونی و روزنې په پروګرام کې د فعاليتونو آزادی تر لاسه کوي.

(III) ماشومان په ټولنيز ډول پر يوی پروژی باندی کار کوي. د همکاري روحيه يې په مينځ کې تقويه کېږي چې په نتيجه کې د ښوونکي او ماشومانو تر مينځ همکاري پراختيا مومي. بلاخره د مناسبې زده کړې زمينه برابرېږي.

(IV) ښوونه او روزنه هيڅکله له خارج څخه په ماشومانو نه تحميلېږی بلکه له دننه خوا د هغې په طرزالعملونو او روشونو کې بدلون رامنځته کېږي.

ډول ویلی شو چې د تعلیمي نصاب په زاړه سیستم کې ټول تربیتي پروګرامونه د مختلفو مضامینو پر بنیاد خرخېده نو کله یې ورته دوهم " درسي کتاب " هم وایه. که حقیقت ته ځیر شو د تعلیمي نصاب زوړ مفهوم ډېر منجمد و. یعنې یوازې د درسي کتاب پر معلوماتو متکي و او بس.

## د تعلیمي نصاب نوی مفهوم:

د نوي نصاب مفهوم د شلمې پېړۍ په سرکې انکشاف کړی دی، چې د زاړه سیستم له مفهوم سره بنکاره توپیر لري. دا سیستم نه جامد دی او نه یوازې د درسي کتاب پر علم متکي دی. بلکې ډینامیک (متحرک) وسیع نظر دی. د وخت له غوښتنو سره سم هغه پلان شوي فعالیتونه چې ښوونکی او زده کوونکي یې تر سره کوي احتوا کوي. همدا ډول، نوی سیستم ټول هغه فعالیتونه په ګوته کوي چې په ښوونځي کې او هم تر ښوونځي څخه د باندې د زده کوونکو د ( فزیکي، ټولنیز، اخلاقي، روحي او معنوي ) ودې له پاره کېږي چې د وخت له غوښتي سره سم د ماشوم شخصیت ته تغیر ورکوي. نو په نتیجه کې ویلای شو چې نوی تعلیمي نصاب دواړه فعالیتونه یعنې لومړی هغه فعالیتونه چې د یو دستور له مخې په تاکلې لار باندې متکي دي ( دیوه مضمون موضوعات) او دوهم هغه فعالیتونه چې پر تعلیمي نصاب سربېره تر سره کېږي، احتوا کوي.

(V) د ستونزو حلول د دې نصاب يو څرګند شکل دې نو پدې ډول يو ماشوم کولای شي چې د خپل ژوند د مختلفو ستونزو د حل‌له پاره خپل مهارت پياوړی کړي.

## نيمګړتياوې:

(I) د دې نصاب په ډېزاين کې د ماشومانو خواهشات، تمايلات، ضرورتونه، روشونه او فعاليتونه د پام وړګرځيدلی دي حال دا چې ټول ماشومان يو ډول خواهشات، نظريات او روشونه نه لري. نو دا به څنګه امکان ولري چې د مختلفو ماشومانو بېلا بېلې غوښتنې په يوه تعليمي نصاب کې ځای په ځای کړای شي.

(II) ماشومان يو اړخيزه ښوونه تر لاسه کوي. ډېر وخت يې په يوه فعاليت تيرېږی، هغوی له نورو فعاليتونو څخه بې برخې پاتې کېږي.

(IV) دا ډول نصاب په مفهومي لحاظ ډېر ګران تماميږی ځکه چې ځانګړو خونو او ډېر وخت ته ضرورت لري.

(V) د دې نصاب يوه ډېره مهمه نيمګړتيا دا ده چې د ۱۱ او ۱۲ کالونو په موده کې ماشومان نه شي کولای په داړه زړه خپل کلتور چې ميراثي بڼه لري او هم د ډېرو مضامينو (تاريخ، جغرافيه، او داسی نورو) په باب اساسي معلومات تر لاسه کړي.

# د درېم فصل په اړه ترتیب شوی چارټ

## د تعلیمي نصاب ډولونه



| پر مضمون متکي تعلیمي نصاب ښېګڼې او نېمګړتیاوې | پر ښوونکي متکي تعلیمي نصاب ښېګڼې او نېمګړتیاوې | پر زده کوونکو متکي تعلیمی نصاب ښېګڼې او نېمګړتیاوې | پر فعالیت متکي نصاب ښېګڼې او نمېګړتیاوې |
|---|---|---|---|

## د درېم فصل په اړه پوښتنې

۱. تعلیمي نصاب څو ډوله دی؟

۲. " پر مضمون متکي نصاب" څه ښېګڼې او څه نېمګړتیاوې لري؟

۳. پر ښوونکي متکي نصاب څه ښېګڼې او څه نېمګړتیاوې لري؟

۴. پر زده کوونکو متکي نصاب څه ښېګڼې او څه نېمګړتیاوې لري؟

۵. "پر ماشوم متمرکز نصاب" څه خاصیتونه لري؟

٦. پر فعالیت متکې تعلیمي نصاب څه غوره والی لري؟

۷. پر فعالیت متکی نصاب کې نېمګړتیاوې توضیح کړئ.

۸. پر شاګرد متکي نصاب په باب د روسو(Rousseau) نظر څرګند کړئ.

# څلورم فصل

## ۱. د تعليمي نصاب ډيزاين(طرح)

( د وضعې تحليل، د اهدافو فورمول بندی، د موضوع انتخاب او تنظيمول د مناسبو ميتودونو انتخاب او شاګردانو د برياوو ارزيابي)

## ۲. د تعليمي نصاب د ډيزاين عنصرونه:

د تعليمي نصاب په ډيزاين کې مختلف عناصر برخه لري چې مشهور يې دلته مطالعه کوو.

### ۱. د وضعي تحليل:

- د وضعې تحليل دا مفهوم افاده کوي چې د يوه هېواد اقتصادي، سياسي، کلتوري، مذهبي، او جغرافياوي مختلف حالتونه په علمي توګه وڅېړل شي. ځکه چې دا مختلف حالتونه د تعليمي نصاب په پر مختياکې ډېر مهم رول لوبوي. څنګه چې تعليمي نصاب د يوه ماشوم په شخصيت کې مثبت تغير رامنځته کوي نو پورتني حالتونه هم د ماشوم پر شخصيت باندی مستقيماً اغيزه لري. په دې حالتونوکې بايد يو بشپړ همغاړيتوب(هم آهنګي) موجود وي

بې له دې څخه د ماشوم نه ښه شخصیت جوړیدای نه شي بنأ کله چې تعلیمي نصاب جوړېږي باید دا ټول حالتونه په نظر کې ونیول شي. نو که دې حالتونو ته په غور سره ونه کتل شي نو نه شو کولای چې خپل ملي، میراثي کلتوري ارزښتونه وساتو او له یوه نسل څخه یې بل نسل ته انتقال کړو.

سربېره پر دې د تعلیمی نصاب متخصصان باید نورو اوضاعو ته هم پام وکړي یعنې د نصاب په لیکلو کې ملي او نړیوالې کړنالارې تعقیب کړي.

په نصاب کې باید د شاګرد عمر، علاقه مندي، سویه او د ښوونکي ښوونیز او روز نیز پروګرامونه او ازموینی سیستم په نظر کې ونیول شي. دا ټول په حقیقت کې د تعلیمي نصاب له متخصص سره د هدفونو په ټاکلو، د زده کړې موادو په ترتیبولو او د متناسبې ارزیابې په طرزالعمل کې پوره مرسته کوي.

## - د اهدافو فورمول بندي:

په تعلیمي نصاب کې د اهدافو فورمول بندي یو ډېر مهم عنصر دی چې باید د نصاب لیکنې په وخت کې په نظر کې ونېول شي. څرنګه چې دا ټول ډېر مشخص هدفونه (Objectives) دي نو په ټولګي کې د ښوونکي او شاګردانو د فعالیتونو په نتیجه کې تر لاسه کېږي او هم په ښوونه او روزنه کې ډېر مهم رول لري. بناً نوموړی هدفونه باید د سیکالوجستانو(اروا پوهانو) د فلسفې د ماهرانو د اجتماعیاتو د مضمون د متخصصانو له خوا وټاکل شي.

## ۳. د اهدفونو د ټاکنې اساسات:

د هدفونو د ټاکلو په وخت کې باید لاندې اساسات په نظر کې ونیول شي:

(I) هدفونه باید د ملت له ایدیالوژی سره بشپړ توافق ولري څرنګه چې زمونږ ایدیالوژي په اسلام متکي ده نو باید زمونږ د تعلیمی نصاب هدفونه له اسلامي اصولو سره کاملاً هم آهنګي ولري. یعنې قرآن شریف او سنت زمونږ د تعلیمي اهدافو اساس وګرځول شي.

(II) داسې هدفونه باید وټاکل شي چې د تر لاسه کولو وړ وي. یعنې تصوري او خیالی بڼه ونه لري او په واقعي توګه له حقیقي ژوند سره مطابقت ولري.

(III) اهداف باید له ټولنیزو واقعیتونو سره همغاړی (همم آهنګ) وي. ځکه چې ټولنه د علمي نصاب په انکشاف کې یو ګټور رول لوبوي. همدا ډول، اجتماعي ارزښتونه هم په تعلیمي نصاب باندی بی اثره نه پاتې کېږي. بناً نوموړي اهداف باید د ټولنېزو ارزښتونو په رڼا کې ترتیب او تنظیم شي.

(IV) هدفونه باید داسې ولیکل شي چې د شاګردانو له سلوک او کردارسره متقابل مناسبات ولري او بي له دې نه د پوهېدو وړ نه وي همدا راز که نوموړي اهداف په واقعي ډول د زده کوونکو له شرایطو او د هغوی له سلوک سره سم ترتیب نه شي نو د تعلمیي نصاب په پراختیا کې په ډیر خنډونه رامنځته شي.

(V) هدفونـه بـايد د دموکراتـيک ارزښتونو پر بنا استوار وي. يعنې زده کوونکو تـه د انتقادي تفکر او منطقي استدلال کولو روحيه ورکړي. او هم د خلکو عامو ضرورتونو او حقوقو ته په جدي توګه پام وکړي.

## ۴. د موضوع انتخاب او تنظيمول:

د تعلـيمي نصاب په ډېزاين کې د يوه مضمون له پاره د موضوعاتو ټاکل او تنظـيمول هـم يـو مهـم پړاو دی. بـناً هغـه متخصصان چې تعلمې نصاب لـيکي بـايد د لـوی عـلم او مهـارت خاوندان وي او لاندې اساسات په ژوره توګه تقيب کړي.

## د موضوعاتو د ټاکلو اساسات:

د تعليمي نصاب موضوګانې بايد د لاندې اساساتو په رڼاکي وټاکل شي.

(I) د يـوه مضمون د موضوعاتو ټاکل لومړی اساس ښي چې بايد په تعلـيمی نصـاب کـې د مضـمون موضـوعاتو د ورځـنی ژوندله پاره ګټور او څنی عام المنفعه اړخونه هم ولري.

(II) دوهـم اسـاس يـې د موضـوعاتو مناسـبوالی ښـيي پـه تعليمی نصاب کې بـايد موضوعات د زده کوونکو د فزيکي، ذهني او احساسي ودې سره سم تهيه او هم د هغوی عمر، استعدادونه، سويې، ذوقونه او روشونه په نظر کې ونيول شي.

(III) دریم اساسـي يـې د مراتـبو سلسـله ده. تدریـس مـواد بـاید پـه سیکالوژیکي اصول سره په لاندې ډول درجه بندي شي:

(a) له ساده څخه پیچلې ته.

(b) له آسان څخه مشکل ته.

(c) له معین څخه نا معین ته.

(d) له معلوم څخه مجهول ته.

(VI) څلـور واړه اساسـات بـاید تغیر پذیر وي پدې معنا چې موضوعات باید منجمد پاتې نشي. کله چې بشر ورځ په ورځ نوي اختراعات او کشفیات کوي.

نـوې مفکـورې او نظـریې د زړو مفکورو او نظریو ځای نیسي. نو لدې امله د وخت له ضرورت سره سم د مضمون په موضوعاتو کې بدلون رامنځته کېږي.

(IV) پـنځم اسـاس يـې تسلسـل (Sequence) دی. د تعلـیمي نصاب محتویات باید داسـی یـوي طـریقې سـره تنظـیم شوي وي چې یو فعالیت د بل پوری تړلی وي. یعـنی د یوه ټولګی د مضمون محتویات د بل ټولګی له پاره بنسټ وي. همـدا ډول د ابـتدایې ښوونځـی ښوونه او روزنه د لیسو له پاره او همدا ډول د لیسو ښوونه او روزنـه د لوړو تعلیماتو له پاره اساسی پایې جوړې کړي.

(V) شـپږم اساس يې د ماشومانو د علاقه منديو او ذوقونو اساس دې. د مضامینو موضـوعات بـاید د ماشومانو له ذوق او علاقه منديو سره سم تهیه شي. پدې ترتیـب سـره ماشـومان زده کـړې تـه تشـویقېږی او زده کـړه ښه کېږي. که ماشومان په مناسبه توګه زده کړې ته تشویق نه شي نو هغه زده کړه به بې معنا وي.

## ۵. د مناسبو میتودونو انتخاب:

د تعلیمي نصاب څلورم مهم عنصر د زده کړي مناسب میتود دي چې د ښوونکي په ذریعه عملي کېږي.

د ښوونکي رول د زده کړې په بهیر کې د ملادتیر حیثیت لري. یعنی ښوونکی د هغو اهدافو د تر لاسه کولو مسئوول ګڼل کېږی چې له زده کوونکو څخه یې د حاصلولوتوقع کېږي. همدا ډول ښوونکی د هغو مثبتو تغیراتو مسئولیت لري چې د زده کوونکو په سلوک، کردار او شخصیت کې رامنځته کېږي. نو که د ښوونکي د تدریس میتود ښه نه وي، نه شي کولای چې د توقع وړ هدفونه تر لاسه کړي. په ښوونه او روزنه کې زده کړه بېلا بېل میتودونه لري. لکه د پروژې میتود، لکچر میتود. د مشکل د حل میتود او داسې نور میتودونه. خو د زده کړي له پاره باید هغه میتود وټاکل شي چې د ماشومانو په ضرورتونو او علاقه منديو متکي وي او د هغه په تطبیق سره ټاکل شوي اهداف په آسانی سره تر لاسه شي.

## ٦. قضاوت یاارزیابي:

د تعلیمي اهدافو او زده کوونکو دبریالتوبونو تر منځ قضاوت کولو ته ارزیابي ویل کېږی.

ارزیـابی د هـر ښوونېـز او روز نېـز پروګرام له پاره ډېر ضرور ده. ځکـه چـې بـې له ارزیـابي څخـه مونږ نشو کولای چې د یوه پروګـرام بریالیتوب او یا نه بریالیتوب څرګند کړو. د ارزیابي په وسـیله مونـږ پوهـیداې شـو چـې زده کوونکو څومره زده کړه کړې ده او مـوږ خـپل ټاکلي هدفونه څومره تر لاسه کړي دي. همداسې مونـږ ویـلای شـو چـې ارزیـابي د تعلیمي نصاب د متخصصانو له پـاره داسـې ګټور معلومات برابروي چې د هغه په رڼا کې کېدای شـی په نصـــاب کـې ځینی بدلونونه رامنځ ته شي او هم کولای شـو چـې د ارزیـابي پـه وسـیله د پلان شویو فعالیتونو فیدبیک تر لاسـه کـړو او پـوه شـو چـې څومـره اصـلي هدفونـه پـه واقعـي او اغېزمـنه توګـه تـر سـره شـوي او کـه څه تغیرات په کې راوستلی شـي چې ګټور شي. باید وویل شي چې د تعلیمي نصاب او د زده کوونکو د ارزیابیو تر منځ توپیر موجود دی.

د زده کوونکـو پـه ارزیابـی مونـږ د شـاګردانو بریالیـتوبونه ارزیـابي کـوو چـې معمـولاً د زده کوونکـو پـه پـر مخـتګ بـاندی قضاوتونه کېږي.

## د تعلیمي نصاب ځینې تعریفونه:

د تعلیمي نصاب اصطلاح د تعلیم او تربیې د بېلابېلو شخصیتونو له خوا په بېلابېلو عبارتونو تعریف شوېده چې ځینې مشهور تعریفونه یې دا دي:

الف. تعلیمي نصاب د کتورو اهدافو یوه عمومي مجموعه ده چې د ښوونې او روزنې مقاماتو (لکه د ملي نصاب څانګو، ښوونځیو، پوهنتونونو او پوهنځیو) له خوا د منظمو او منسجمو مطالعاتو له پاره د یوه منل شوي او تجویز شوي، اساس په توګه تنظیم شوې وي. د تعلیمي کلاسونو او نورو درسي کتابونو محتویات باید د هغه اساسي لاربنود سره مطابق وي چې په تعلیمی نصاب کې راغلي وي.

ب. په تعلیمی نصاب کی ټوله هغه زده کړه شامله ده چې د یوه اصل له مخې پلان او رهنمایي شوې وي. خو په هغه صورت کې چې نوموړې زده کړه په ګروپي او یا انفرادي شکل سره په ښوونځي کې د ننه او یا تر ښوونځي د باندې تر لاسه شوې دي. (J.F.Kerr)

ج. تعلیمی نصاب د ښوونیز او روزنیزو هدفونو قانوني تطبیقونه بنیي چې د ښوونځي تر اغیز لاندې تدریس او زده شي (Jenkin and Shipman)

د. تعلیمي نصاب د یوه ټولنیز ګروپ پېژاین دی چې په ښوونځي کې، د خپلو ماشومانو په تعلیمی چاروکې ترې ګټه اخلي.(G.A.Seanchamp) . له پورتنیو تعریفونو څخه معلومېږي چې د تعلیمي نصاب اصطلاح د دواړو

# ۷. د څلورم فصل په اړه ترتیب شوی چارټ

## د تعلیمي نصاب دیزاین (طرح)



| د وضعې تحلیل<br>د اهدافو<br>فورمول بندي | د موضوع انتخاب<br>او تنظیمول<br>د مناسب میتود انتخاب | د زده کوونکو<br>دبریاوو<br>ارزیابي |
| --- | --- | --- |

## ۸. د څلورم فصل په اړه پوښتنې:

۱. د تعلیمي نصاب په ډیزاین کې کوم عنصرونه ډېر مهم رول لري؟ په مختصر ډول یې تشریح کړئ.

۲. په تعلیمي نصاب کې اهداف څه ډول فورمول بندي کولای شي؟ په مختصر ډول تشریح کړئ.

۳. په تعلیمي نصاب کې د اهدافو د ټاکلو اساسات توضیح کړئ

۴. د سیکالوژیکي اصول له مخې باید تدریسي مواد څه ډول درجه بندي شي؟

۵. د زده کړې په بهیر کی د ښوونکي دنده څه ده؟

٦. ارزیابی تعریف کړئ او ووایئ چې ارزیابي په ښوونه او روزنه کې څه ارزښت لري؟

۷. تعلیمي اهداف باید څه خصوصیتونه ولري؟

# پنځم فصل

## په افغانستان کې د تعلیمي نصاب انکشاف

د تعلـیمي نصـاب د انکشـاف بهیـر ډېر پیچیده اړخونه لري. ځکه چې ورځ په ورځ ټولیـز، اقتصـادي او کلـتوري ضرورتونه فرق پیدا کوي. بناً د تعلیمي نصاب پلان جوړونکي باید د ورځنیو غوښتنو سره سم تعلیمي نصاب ته انکشاف ورکړي.

پـه افغانسـتان کې اوسنی تعلیمي نصاب زمونږ د ټولنې ضرورتونه پوره کولای نــه شـي. د ښوونځــی اړونـد درسـي کتابونه د ښوونکو تربیوي کورسونه او درسی نورتعلـیمي مـواد د زده کوونکـو لـه روحـیې سـره سمون نلري. ځینی غیر ضروري مـواد په پر له پسی ټوګه تکرار شوي او ځینی یې د ماشومانو د پوهې له سطحی سـره بـاالکل مطابقـت نلـري. زیاتـره نصـابونه د مفهومونـو پــه لحــاظ ډېـری نېمګړتـیاوې لري. نو ځکه د انکشاف په وخت کې له ستونزو سره مخامخ کېږی. مګـر پـه یـوه معیـنې ټولـنه کـې د ښوونــې او روزنــې یوازنــی وظـیفه داده چې د ماشومانو شخصیت ته د ټولنې له غوښتنی سره سم وده ورکړي.

بـناً د تعلـیمی نصـاب پراختـیا په یوه رسیدلې (پوه) ټولنه کې دومره ستونزې نـه رامینځـته کـوي. مګر په نورو هېوادونوکې، لکه افغانستان د نصاب پرابلمونـه

ډېر پیچلي او مغلق دي. ځکه چې پدې ټولنه کې کلتوري موانع، غریبي، ناروغی، بې عدالتی او محیطي نا برابری هغه ستونزې دي چې فلسفي، رواني، ټولنېز، مذهبي، او اقتصادي ریښې لري.

نوکله چې تعلیمي نصاب جوړېږی باید د نصاب ماهران نوموړی پرابلمونه په غور سره تجربه او تحلیل کړي او بیا د ټولنی د ضرورت له مخی داسی نصاب تدوین کړی چې د خلکو په ګټه وی.

## ۱- د ستونزو اړوند هدفونه!

په ښوونه او روزنه کې تعلیمی هدفونه ډېر مهم رول لوبوي. ځکه چې هدفونه له نصاب سره نیغ په نېغه اړیکي لري.

یو نصاب هغه وخت ډېر اغېزمن وي چې په پراخه پیمانه اهداف ترلاسه کړي. کوم چې د ټولنی د تحولاتو په نتیجه کې رامنځ ته کېږی او همدا دلیل دې چې زمونږ د نصاب محتویات د ټاکلو هدفونو او مقصدونو په لاسته راوړلو کې پوره مرسته کولای نشي او نه د زده کوونکو د ورځینی ژوند سره مناسبت لري، او همدا راز د زده کوونکو ابتکاري، استعدادونو، پوهې او په زړه پورې مباحثو او مناقشوته انکشاف هم ورکولاي نشي له بل پلوه زمونږ په هېواد کې د تعلیمي نصاب د پراختیا څېړنې ډېرې لږې دي او نه دا محتویات د حقیقي څېړنو په نسبت ټاکل شویدي.

له بده مرغه زمونږ په هېواد کې اوسنی تعلیمي نصاب، غیر واضیح او مبهم دی. نشي کولاې چې زمونږ ټولنېز او اقتصادي ضرورتونه پوره کړي. له دې کبله چې، زمونږ ډېر تعلیمی نصابونه د اروا پوهنې د قوانینو په اساس نه دي لیکل شوي د ماشومانو ذهني، احساسي او ټولنېزو ارزښتونو ته پراختیا نه شي ورکولای.

## ۲- د محتویاتو ستونزې:

محتویات د تعلیمي نصاب د مضامینو موضوعات احتوا کوي چې په حقیقت کې دتعلیمي نصاب د ملاتیر ګڼل کېږي.

محتویات تل د ټولنې د ضرورتونو پر بنیاد تاکل کېږي. کله چې په یوه ټولنه کې نوي کشفیات او اختراعات رامنځته کېږي نو پدې سره جوخت تعلیمی نصاب هم تغییر خوري. ځکه چې تعلیمي نصاب یو متحرک بهېر دې. خو له بده مرغه زمونږ په هیواد کې غیر متحرک یا جامد، شکل لري. زمونږ تعلیمي نصاب د دې وس نه لري چې هغه تحولات وزغمي.

## ۳- د ښوونې د میتود اړونده ستونزې:

د تعلیم میتود د غوښتل شویو هدفونو تر لاسه کولو مسؤول ګڼل کېږی. د تعلیم یو ښه او مناسب میتود په ټولګی کې د ماشوم د بریالی زده کړې داډ ورکوي. مګر زمونږ په هېواد کې د تعلیم میتودونه هم کمزوري دي او نشي کولاې چې د زده کړی بهېر بریالی کړي. هغه میتودونه چې مونږ ورڅخه په ټولګي کې

کار اخلو پدی قادر ندي چې زده کوونکي وهڅوي او هغوی ته زده کړه په زړه پوری کړی. دلیل یې دا دی چې د تعلیمي نصاب د متخصصیونو له خوا د هر مضمون له پاره مناسب میتودونه نه دي وړاندې شوي. دغه راز، په ټولګیوکې هم له ګډو ارتباطي روشونو څخه کار نه دي اخستل شوی.

## ۴- د ارزيابۍ ستونزی:

د ښوونې او زده کړی په بهیرکې د ارزیابی اهمیت باید له پامه و نه غورځول شي. ځکه چې د تعلیمي نصاب بریالیتوب په ارزیابۍ باندې ولاړ دی. د ارزیابی په نتیجه کې د نصاب متخصصین معلومات تر لاسه کوی چې څومره تعلیمي اهداف د نوموړي نصاب په تطبیق سره تر سره شویدی او څومره یې پاتی دي.

په ګران افغانستان کې د ارزیابی ستونزی د محتویاتو د میتودونو له ستونزو څخه لږې ندي. د تعلیمي نصاب په خواکې د زده کوونکو ارزیابي هم په درسته توګه نه ترسره کېږی. او نه د ارزیابی له پاره مناسب ترتیبات موجود دي. بناً د دې نقصونو په درلودلو سره نشي کولاي چې د تعلیمي نصاب او نورو تربیوی پروګرامونو نېمګړتیاوی په ګوته کړی دلیل یې دادی چې د پروګرامونو له پاره د نصاب ماهرانو له خوا مناسبه ارزیابي نه ده وړاندې شوې. سربېره پردی، زیاتره وخت د ازمښتونو مواد مبهم، غیر واضح او دا روندہ کورس له هدفونو سره ارتباط نلري.

## د تعلیمی نصاب د انکشاف اړوند سپاربښتني:

د تعلیمی نصاب د انکشاف له پاره باید اړوندې سپاربښتنې په پام کې ونیول شي.

۱. تعلـیمي نصـاب بـاید زمونـږ د ټولـنېزو، کلـتوري او اقتصـادي ضرورتونو او ارزښتونو پربنیاد جوړ شي.

۲. تعلیمي نصاب بـاید د ماشومانو ذهني استعدادونو سره سم وتاکل شي. د دی مقصد له پاره بـاید دولـت پـه مـلي او نړیوالـه سـطحه د ښوونـې او روزنې له ماهـرانو او سیکالوجیسـتانو څخـه مرسـته وغـواړي چـې تعلـیمی نصاب داسی ډیـزاین کـړي چـې د زده کوونکو اساسی مهارتونه په لیکلو، لوستلو، غږېدلو، اورېدلو او پوهیدلوکې پراختیا ومومي.

۳. نصـاب باید په خیالی او تصوري اهدافو متکی نه وي. بلکې په هغو نورمالو واقعتونو متکي وي چې ماشومان په ورځېني ژوند کې ورسره مخامخ کېږي.

۴. اسـلامي ښوونـې بـاید زمونـږ د نصـا ب یوه اجباري برخه وي. ځکه چې ماشومان د اسلام د ښوونو په رڼاکې مُوفقانه ژوند ته رهنمایي کېږي.

۵. د نصـاب پـه انکشـاف کـې بـاید ماهـرو ښوونکو ته برخه ورکړل شي. د هغوی په غیاب کې به تعلیمي نصاب بریالی نه وي.

۶. درسـي اهداف باید د درس له پیل څخه له مخه ولیکل شي او په ټولنیز، کلتوري او مذهبي اساساتو متکي وي.

۷.  اهداف باید  د زده کوونکو له سلوک او کردار سره سم ښه توضیح او تشریح شي.

۸.  زمونږ د ټولنېزو او مذهبي دودونو په رڼاکې باید په درسي موضوعاتو کې درسي مواد ځای په ځای شي چې ماشومانو ته په هر اړخیز ډول وده او انکشاف ورکړي.

۹.  باید د تعلیمي نصاب پلانران ( پلان جوړونکی) د ماشومانو عمر سره مناسب میتودونه وړاندې کړي.

د مثال په توګه: په ابتدایي دوره کې د فعالیتونو او پروژې میتودونه ګټور دي. د دی مقصدلــه پاره باید د ښوونکو لارښودونه تیارشي چې د تعلیم په بهیر کې ورسره لازمه مرسته وکړي.

۱۰. د تعلیمي نصاب متخصصان باید د ارزیابی‌لــه پاره یوه مناسبه لایحه تجویز کړي چې نوموړي نصاب په ښه توګه شویو اهدافوکې څومره بریالیتوب ترلاسه کړي دی.

# د پنځم فصل په اړه ترتیب شوی

## چارټ




## د پنځم فصل په اړه پوښتنې:

۱. په افغانستان کې اوسنی تعلیمي نصاب زمونږ د ټولنې ضرورتونه پوره کولای شي؟

۲. د تعلیمي نصاب د انکشاف له پاره باید کومې سپارښتنې په پام کې ونیول شي؟

۳. د محتویاتو د اړوندو ستونزو په باب خپل نظر ووایئ.

۴. د ښوونې د میتود اړوندو ستونزو په باب خپل نظر څرګند کړئ.

۵. د ارزیابی یا قضاوت په باب خپل نظر څرګند کړئ.

# شپږم فصل

# تعليمي هدفونه او د هغوی د طبقه بندۍ معيارونه

۱- نهايي هدف:(Goal)

دا د مقصد (Purpose) او يا پای (The end)په معنا کارول کېږي. خو د اکسفور ډکشنري نهايي هدف ته ټارګيت(Target) او يا د متحدو هڅو نتيجه بللی ده. که مونږ لږ ځير شو يوه ټولنه نومورې هدفونه په خپل تربيتی نظام کې د تعليمی مقصدونو له پاره کاروي. بناً ويلی شو چې :

نهايي هدفونه (Goals) هغه هراړخيز مقصدونه په ګوته کوي چې په ښوونيز او روزنيز پالسي (کړن لاره) کې په څرګند ډول ښودل شوي وي او د يوی ټولنې لوړی هيلي او ضرورتونه په ګوته کوی چې ځينې عمومي اهداف يې دا دي.

- د مسلک په لحاظ د ښو افرادو روزنه.
- د ښو هيوادوالو روزنه.
- د ټولنيز کلتور ساتنه او له يو نسل څخه بل نسل ته يې انتقالونه.

فعالیتونو لـه پاره چې ښوونځي کې د ننه او یا ورڅخه د باندی په ګوته کوي چې پـه تعلیمي او تربیتي اداره کې د افـرادو د زده کړې له پاره ښې زمینې برابر وي.

## ۲. د تعلیمي نصاب ساحه (Scope):

د تعلیمی نصاب د پراختیا اساسي ساحې دا دي:

### الف. د تعلیمي نصاب جوړښت:

د یـوه تعلیمي نصاب په جوړښت کې ټولې هغه مرحلې شاملې دي چې د تعلیمي نصاب د عناصرو په باب په کې تصمیم نیول کېږي.

### ب. د تعلیمي نصاب ډیزاین (طرح):

د تعلـیمي نصـاب د طرح کولو په پړاو کې د تعلیمي نصاب عناصر ترتیب او تنظیم کېږي. دغه عناصر دا دي:

- لرې هدفونه (Goals)
- نژدې هدفونه (Objectives)
- د زده کړی فعالیتونه
- د ارزیابي پروسه
- د عناصرو خصوصیتونه

## ۲. هدف(Aim)

دا هـدف هـم(Purpose) او پای (The end) په مقصـد او هم د ارادې او تصـميم (Intention) پـه معـنا کارول شويدی. خو اصطلاحاً له ګول(Goal) سره دومره توپېر نلرې.

د مثال په توګه: مونږ وايو چې د احمد هدف (Aim) دادی چې ډاکتر شي خـو پـه ښوونـه او روزنـه کـې (Aims) هغه عام مقصدونه په ګوته کوي چې په نورمالـه توګـه د يـوه ځـانګړي پړاو يا ليول (Level) له پاره چمتو شوي وي. د هدفونه (Aims) داسې دقيق سمتونه ښيي چې د تعليم مسؤول کسان يې د تعليمي سيستم په ټولو برخو او يا په ځينو برخوکې تعقيب کړی.

- بناً (Aims) د (Goals) هدفونه په مشخص ډول ځيري.

## ۳. هدف (Objective)

- دا د (Goal)l او (Aim) د معـنا و پـه شان د مقصد او پای (Purpose) (The end) يـا ارادې او تصـميم (Intention) معـنا ورکـوي. خـو پـه اصـطلاح کې هغه برياليـتونه ښـيي چـې د يوه پلان شوي کار په نتيجه کې له خپلو لغوي معـناو سره فرق لري دا په تعليمی او تربيتی پروګرامونو کې هغه هدف ته ويـل کيـږی چـې تـريوه ټاکـلي کورس وروسته د يوه فرد په سلوک کې د توقـع وړ بدلونونـه رامنځ ته شي. دا بدلونونه په طبعت کې ډېر مشخص دي. لکه د يوه درس هدفونه(Objectives).

د مثال په توګه: د درسي کومکي موادو د درس هدف له شاګردانو څخه دا توقعات لري چې د درس تر مطالعې وروسته باید:

- سمعي او بصري مواد وښودلای او تشریح کړای شي.
- د سمعي او بصري موادو اهمیت بیان کړای شي.
- په درس کې سمعي او بصري مواد عملاً وکارولای شي.

## توپیر:

لـه پورتنیو څرګندونو څخه معلومېږي چې د (Goal)، (Aim) او (Objective) لغوی معنا وې یو شان دي. حتی په ورځني ژوند کې یې توپیر نشو کولای. دا دواړه کلـیمي پـه پښـتو کې د مقصد یا هدف په معنا ژباړل شوې دي. خو کله چـې د دې کلـیمو په باب په ښوونه او روزنه کې خبرې کوو نو دغه کلمې بیا بېلابېل تعریفونه او ځانګړي مفهومونه لري.

پـه تعلـیم او تربیه کې (Goals) هغه عام مقصدونه په ګوته کوي چې د ښوونی او روزنـی پـه سیسـتم کـې د یوی اوږدې لوړی آرزوګانې او ضرورتونه ښیې چې د دولـت له خـوا تـاکل کېـږي.(Aims) پـه هغـو عـامو مقصـدونو پـورې اړه لري چې ښوونې او روزنې په سیستم کې د یوه ځانګړی پړاو له پاره تهیه شوی وي.

همـدا ډول، (Objective) هغـه تغیـرات پـه ګوتـه کـوي چـې د زده کوونکـو پـه سلوک کې د یوه معین تعلیمي کورس تر بشپړیدو ورسته لیدل کېږي.

اوس په لنډ ډول پورتني مطالب خلاصه کوو او وایو چې د (Goals) تعلیمی

اهـداف په لوړه پیمانه (Aimes) تعلیمي اهداف په لږه پیمانه او (Objectives) په ډېره لـږه پـیمانه عمومیت لري. د ساري په توګه وایو چې د ښووني او روزنې هـدف څه دی؟ دي هدف ته (Goal) وایي. همدا ډول، که ووایو چې دلیکلو او زده کـړې هـدف څـه دي؟ دې تـه (Aim) وایـي. او کـه ووایو چې د دې درس هدفونه څه دي؟ نو مراد څنې (Objectives) دي.

## ۴. سلوکي هدفونه :

هغـه هدفونه (Objectives) چې د زده کوونکو کردار او سلوک توضیح کړي، سلوکي هدفونه(Behavioral Objectives) یې بولي.

د ښووني او روزنې معنا داده چې د یوه فرد په کردار او سلوک کې مثبت تغـیر راولي. کـه پـه یـوه تربیـتی بهـیر کې د تعلیمی فعالیت پوسیله د یو فرد سـلوک تغیر ومومي نو وایو چې تعلیم او تربیې په حقیقي بڼه خپل ځای نیولی دي. دغـه مـتوقع سـلوکي تغـیرات چـې پـه زده کوونکو کي د یوه درس یا یو درسونو په پای کی رامنځ ته کېږی د سلوکي (کرداري) هدفونو په نامه یادیږی.

او یا په بل عبارت کرداري یا سلوکي هدفونه هغه هدفونه دي چې راښیي" زده کوونکـی د تعلـیم پـه پای کې څه باید وکړي او یا څه وکولی شي؟" دا پـه حقیقـت کـې هغـو کـړن لارو پـورې اړه لري چې زده کوونکي پرې عمل کـوي او تاکـلي فعالیـتونه سرته رسـوي. دا ډول هدفونـه واضـح، روښانه، مشخص او د ازمیښت وړ وي.

## ۵. غیر سلوکي هدفونه(Non-behavior Objectives):

غـیر سـلوکي اهداف هغه هدفونه دي چې د زده کوونکو د سلوک په اړوند توضـیح شوي نه وي. یعنې معلومه نه وي چې زده کوونکي د درس تر ختمیدو وروسـته څه وکړي؟ دا ډول هدفونه غیر مشخص او غیر واضح هدفونه دي چې دازمیښت وړ نه وي.

د مـثال پـه ډول، کـه ښوونکـی د ابراهـیم بن اد هم علیه الرحمه په باب شعر خپلو شاګردانو ته تدریس کړي نو د دې شعر سلوکي او غیر سلوکي هدفونه په لاندې ډول دي:

غیر سلوکې هدفونه عبارت دی له:

- زده کوونکي باید د ابراهیم بن ادهم په کیسې پوه شي.
- زده کوونکـي بـاید د ابراهـیم بـن ادهم په هکله پوښتنې او ځوابونه تهیه کړي.

سلوکي هدفونه عبارت دي له:

- زده کوونکـي د دیـنی معـتقداتو پـه رڼاکي د شعر اهمیت په باره کې خبرې وکولای شي.
- زده کوونکي د ښو او بدو اشخاصو تر منځ فرق بیان کړای شي.

# ٦.د سلوکي هدفونو د ټاکنې او قضاوت معيار

سلوکي هدفونـه د زده کړې په بهير کې ډېر ارزښت لري. کله چې ښوونکی وغواړي زده کوونکو ته يو درس ورکړي.

د تدريـس پـه پـيل کې بايد د توقوع وړ بدلولونه چې د زده کوونکو په سلوک کـې رامنځـته کـيږی ښـه توضـيح کـړي د دې هدفونو تيارول هم آسانه کار ندی. حـتماً ښوونکـی پـه کـې له ډېـر سـتونزو سره مخامخ کيږي. بنأ کله چې ښوونکی نوموړی هدفونه ټاکي بايد لاندی معيارونه په پام کې ونيسي.

- بشپړوالی(Complaten ness)

د مفهـوم پـه لحـاظ پـدې هدفونوکې د ټول کورس مهمی نتيجی‌شاملې دي. چې د پوهی، تفکر او روشونو او مهارتونو ساحې احتوا کوي.

- درستوانی(Sound ness)

دا هدفونـه بايد د زده کړي له قوانينو سره هم آهنګي ولري. يعنې د زده کوونکو د عمـر پـه تناسـب، د تجـربوی معلومـاتو پـر بنياد داسی عيار شي چې د زده کوونکو له خواهشاتو او ضرورتونو سره مستقيماً اړيکي ولري.

- مناسب والی(Appropriateness) :

دا هدفونه بايد د ښوونځی له عمومی هدفو (Goals) سره بشپړ مطابقت ولري

چې هر ښوونکی ورته په آسانۍ سره د ښوونځی په سطحه پراختیا ورکړي.

- د عمل قابلیت(Feasibility)

اهداف باید په دقیق ډول عملي اړخونه ولري. یعني د زده کوونکو له استعدادونو، او وخت سره مستقیماً متناسب وي او د نورو آسانتیاو له پاره یې زمینه برابره کړي. بناً پر دې یو لړ محدود هدفونه چې عملي او تطبیقي اړخونه ولري له هغو ډېرو هدفونو څخه غوره دي چې عملي اړخ ونه لري.

## ۷. د سلوکي هدفونو د لیکلو معیار

د سلوکي هدفونو د لیکلو په وخت کې باید لاندې ټکو ته پام وشي.

۱. سلوکي هدفونه باید واضح ولیکل شي چې په تشریح کې یې ستونزې رامنځته نه شي.

۲. د هرې موضوع سلوکي هدفونه باید د زده کوونکو کړه وړه توضیح کړي چې د تعلیم په نتیجه کې یې حاصلوي.

۳. د یو حالت له پاره باید یو هدف په نظر کې ونیول شي.

۴. دا هدفونه باید د ښوونکي او زده کوونکو د فعالیتونو په حساب ونه لیکل شي.

۵. سلوکي هدفونه باید د زده کړي په بهیر کې ونه لیکل شي. بلکي د زده کړي د محصول( زده کړی د نتیجی) په حساب ولیکل شي.

د مثال په توګه: د "نباتاتو د حجرو ساختمان په لابراتوار کې" د سلوکي اهدافو لیکل د تجربي په جریان کې درست ندی.

د دې سلوک اهداف دادي:

(I) زده کوونکي د حجرو د برخو په هکله معلومات ورکړای شي.

(II) زده کوونکي د میکرسکوپ کاروني له پاره معلومات ورکړای شي.

(III) زده کوونکي د علمي مشاهدي درست رپورت ولیکلای شي.

# ۸. د زده کړې د نتيجو اهميت

د زده کـړي نتيجی په حقيقت کې زمونږ د غوښتنې وړ هغه هدفونه دي چې د تعلـيم پـه پـاي کـې تـر لاسـه کېـږي د دې زده کړو د نتيجو اهميت په لاندی کرښو کې توضيح کېږي.

- لـه ښوونکـی سره مرسـته کـوي چـې په ټولگی کې د درس له پاره مناسب موضوعات وټاکل شي.
- د زده کوونکو د بېلابېلو فعاليتونو په ټاکلو کې مرسته کوي.
- ښوونکـی د نومورېـو هدفونـو تـر لاسـه کولـو له پاره په ټولگي کې له مختلفو تخنيکونو څخه کار اخلي.
- ښوونکـي د دې له پـاره په ټولگي کې مختلف فعاليتونه تنظيموي چې د زده کوونکو په سلوک کې مثبت تحول راشي.
- دا هدفونه بايد ارزيابي شي چې څومره ښېگڼې او څومره نېمگړتياوې لري.

# ۹. د تعلیمي هدفونو د طبقه بندۍ معیارونه

طبقه بندي داسي پلان (نقشه) شيي چي ډېر مهم شیان پَه کي په یوه خاص نظم سره ترتیب شوي وي. پر دې اساس د تعلیمي هدفونو طبقه بندي هم یو پلان په ګوته کوي چې نوموړي هدفونه په کې تنظیم شوي وي. نوموړی پلان تعلیمي هدفونه په درې مهمو برخو ویشي چې دلته په مفصل ډول څیړل کېږي.

## (I) د ادراک ساحه (Cognitive domine)

دې طبقه بندۍ چې د بلوم (Bloom) او د هغه د همکارانو په وسیله یې پراختیا موندلې ده، هغه هدفونه په ګوته کوي چې د زده کوونکوله ذهني استعدادونو، مهارتونو او علم سره سرو کار لري. دا ساحه په شپږو ورو فرعي کتګوریو وېشل کېږي؛ لکه:

الف. پوهه: Knowledge

ب. فهم: Comprehension

ج. تطبیق: Application

د. تجزیه او تحلیل: Anlay sis

هـ. د برخو ګډون (ترکیب) ارزیابي: Synthesis

ز. ارزیابي: Evaluation

## (II) د عمل ساحه (Affective Domine)

دې طبقه بندۍ بلوم(Bloom) میسیا(Masia) او کراتوبي (Krathwohl ) د ډېررو زحمتونو ګاللو په نتیجه کې انکشاف موندلی دی. په دې ساحه کې هغه هدفونه شامل دي چې له رویشونو، علاقه مندیو او عادلانه سنجش سره سروکار لري.

دا هم د مخکنۍ ساحې په شان په لاندی پنځو کټګوریو وېشل شوي ده.

الف. پوهېدل.

ب. اخستل او رسیدل ځواب ورکول.

ج. عکس العمل ښودل.

د. تنظیم او ترتیب.

هـ د یوه پیچلي مفهوم تشریح کول.

## (III) حرکي ساحه( Psychomotor Domine )

دې طبقه بندۍ د انتیاهارو (Anita harrow) په وسیله انکشاف موندلي دي. د دې ساحې هدفونه له عضلاتي حرکاتو سره سرو کار لري؛ لکه: د لیکلو، ټایپ کولو مهارت. دا ساحه هم په شپږو فرعي کټګوریو وېشل شوې ده. لکه:

a) تصویري انعکاسي حرکت.

b) انساني حرکت.

c) فزیکي قابلیتونه.

## ج. د تعلیمي نصاب انکشاف:

د تعلـیمي نصـاب انکشاف، په حقیقت کې د نصاب د ډیزاین. تطبیق او ارزیابی بشپړ بهیر احتوا کوي.

د تعلیمي نصاب په انکشاف او جوړښت کې فرق دا دی:

د تعلـیمی نصـاب پـه انکشـاف کـې د نصاب د ډیزاین او جوړښت بشپړه پروسـه شـامله ده. حـال دا چې د نصاب جوړښت د نوموړې پروسې یوه برخه ده چې په هغې کې په یقیني ډول د نصاب د عناصرو په باب تصمیم نیول کېږي.

## د. د تعلیمي نصاب تطبیق:

دا په حقیقت کې هغه مرحله ښیي چې تعلیمي نصاب عملاً په ټولګي کې تـر ازمیښـت لاندی نیول کېږي. ځکه چې د یوې محتوي/موضوع د زده کړې مهـارت، نهـایی هـدف تـل داوي چـې زده کوونکي هغه زده کړي او د زیاتې زده کړې له پاره یې په ژوندانه کې د هغو د تطبیق وسیله شي.

## هـ. د تعلیمي نصاب اساسات

د تعلـیمي نصـاب اساسـات هغه اساسي نظریې دي چې د تعلیمی نصاب په تشکل کې اغېزمن رول لري لکه:

د تعلـیم او تربـیې او د عـلم بـه باب مشخص فلسفي نظریات، د ټولنې او کلتور اغیز او د ماشوم د زده کړې په باب نظریې چې هغوی څنګه زده کړه تر لاسه کوي.

d) نظمي قابليتونه.

c) د حرکت مهارت او داسي نور.

اوس غواړو چې د بلوم د طبقه بندۍ ساحې په جلا توګه تر څیړنی لاندی ونیسو.

## (I) د ادراک ساحه (Cognitive Domine)

بلوم (Bloom)او نورو مسلکي ماهرانیو په ۱۹۵۵ کال کې د پوهې ساحه په شپږو فرعي ساحو باندي وېشلې ده.

### - پوهه (Knowledge)

پوهه د بلوم Bloom په طبقه بندۍ کې لومړی درجه لري چې په حقیقت کې د پخوانیو درسونو یادونه کوي. یعنې له شاګردانو څخه پوښتنه کېږي. ممکن له هغوي مشخص معلومات او یا مفصل معلومات وغوښتل شي. دا معلومات د زده کړي په ساحه کې په ټیټه سطحه سنجش شي. خو سره له دې معلوماتي هدفونه د حافظې تشریحي پوهیدنه تقویه کوي چې ځینی مثالونه یې په لاندې ډول ترتیب شوي دي:

(I) د افغانستان لومړنی ریس جمهور څوک و؟

a) محمد داود

b) محمد ظاهر شاه

c) امیر حبیب اله خان

d) امیر شیر علي خان

(II) زمونږ د ګران هېواد د دریو ولایتونو نومونه واخلئ!

(a
(b
(c

(III) د کرکې او تنفر ضد کلیمات ولیکئ.

(a
(b
(c

## - پوهیدنه (درک) (Comprehension)

فهم (درک) له یوې موضوع یا مادي څخه د مطلب اخستنې په معنا تعریف شوي دی.

که وغواړو چې د یوې مادې په باب معلومات تر لاسه کړو، باید دې پوښتنو ته ځواب وویلی شو چې:

دا څنګه ماده ده؟ اجزای یې څنګه ترکیب شوي دي؟ جنس یې څنګه دي؟ مرکبات یې څه دي؟ د یوه لیکلي متن پر موضوع باندي د پوهیدلو له پاره لاندې ټکي هم ضروري دي:

- په خپلو کلیمو سره یې لیکل.
- له متن څخه نتیجه ایستل.

- د څينو معينو شيانو په باب مخکې له مخکی څه ويل (پيشګويي)
- د متن توضيح کول.

## - تطبيق يا استعمال (Application)

تطبيق د زده کړې د موادو د استعمالو د قابليت معنا ورکوي چې څنګه د ورځني ژوند او واقعي حالاتو سره سم تطبيقي اړخ پيدا کړي. په دې کې د (قوانينو، ميتودونو، نظريو او داسي نورو) تطبيق شامليږي. پدې ساحه کې دزده کړی نتيجې په پوره سطحه پوهه غواړی او هم پدې کتګوريو کې بايد د زده کړې له تجربو څخه په ورځني ژوند کې عملي ګټه واخستله شي.

لکه:

۱. د کليمو کارول په جملو کې.

۲. په ورځني ژوند کې د ستونزو حلول.

## - تجزيه او تحليل(Analysis)

تجزيه او تحليل هغه استعداد او قابليت ښي چې وکولاي شي مواد په خپلو اجزاوو باند و ويشي چې جوړښت يې د پوهيدنې وړ وګرځي پدې برخه کې د موادو بېلابېلو برخو پېژندنه او د هغوي په منځ کې د اړيکو تجزيه او تحليل او همدا ډول د اړونده تشکليلاتي اساساتو پېژندنه ضروري ګڼل کېږي.

دلته د زده کړي د نتیجي فهم (درک) او تطبیق په نسبت اوچته ذهني سویه یا سطحه ښیئ. ځکه چې پدې صورت کې د موادو ترکیب او پر متن باندی پوهیدنه دواړه شامل دي. ځکه چې د تجزیوي او تحلیلی پوښتنو په وسیله له زده کوونکو څخه غوښتل کېږي چې د مختلفو موادو او عناصرو تر منځ اړیکي وپېژني.

## - د ترکیب مهارت(Synthesis):

د ترکیب مهارت د هغه قابلیت یا استعدادو معنا ورکوي چې څنګه کولای شو د یوې کلیمي بېلابېلي برخې سره یو ځای کړو چې یوه با معنا کلیمه یا عبارت ترې جوړ شي.

د ترکیب مهارت د ابتکار سره ډېر نېږدې اړیکی لري. پدي ساحه کې معمولاً د زده کړې د نتیجو پواسطه ابتکاري سلوک په لوړه پیمانه تقویه کېږي. په ترکیب کې (افهام او تفهیم رامنځ ته کول، د عملیاتو پلان او داسي نور شیان) شامل دي.

## - ارزیابي:

د یوه شي د ټاکلي هدف او ارزښت تر مینځ قضاوت ته ارزیابي وایي. په ښوونه او روزنه کې د زده کوونکو معلومات، سلوک او یا د ښوونیزو او روزنیزو پروګرامونو د اندازه کولو قضاوت ته ارزیابي وایي. دا قضاوتونه د یوي ټاکلې

لایحي په وسیله کېږي. دا ټاکلي لایحه او مقرره ممکن یو خارجی معیار وي چې د هغه په وسیله ارزیابي کېږي.

د مثال په توګه، ویلې شو چې څنګه مواد په منطقي توګه تنظیم شوي او څنګه له اصلی مقصد سره اړیکي لري؟

ارزیابي د زده کړی په طبقه بندۍ کې ډېر لوړ مقام لري. ځکه چې د هرې کټګوري عناصر په کې شته او ورسره د یوه ټاکلي معیار په وسیله قضاوت کېږی.

## ۱۰. د شپږم فصل په اړه تر تیب شوی چارت




## ۱۱. د شپږم فصل په اړه پوښتني:

۱. نهایي هدف، عمومي هدف او خصوصي هدفونه تعریف او توضیح کړئ.

۲. سلوکي اهداف او غیر سلوکې اهداف تعریف او فرقونه یې له مثالونو سره توضیح کړئ.

۳. د سلوکی هدفونو د تاکنی او قضاوت معیار توضیح کړئ.

۴. د سلوکي هدفونو د طبقه بندی معیارونه توضیح کړئ.

۵. د پوهـی سـاحه چې بلوم (Bloom) او نورو مسلکی ماهرینو په شپږو فرعی ساحه وېشلی توضیح کړئ.

# اووم فصل

# ۱. د ښووني عنعنوي میتودونه

## ۲. د لکچر میتود(Lecture Method):

د لکچر میتود د تدریس پخوانی عنعنوي میتود دي چې تر اوسه پوری زموږ په تعلیمي اداروکې رواج لري پدی مېتود کې ښوونکی لکچر ورکوي. زده کوونکي یې اوري. په درس کې زده کوونکي فعاله برخه نه اخلي. یعني غیر فعال اوریدونکي وي. ځینی وخت له لکچر څخه نوټ هم برابروي پدی میتود کې د شاګرد بدنيَ او ذهني استعدادونه پراختیا نه مومي په ښوونیز او روزنیزو اساساتوتکیه نه لري.

که ماشومان له یوې خوا د ښوونکي وینا وې اوري له بلی خوا یی هیرېږي په دې قادر ندي چې د ښوونکی درس بیا تشریح کړي. نو له دې کبله نوموړی میتود ته تیار، بي تکلیفه (Spoon-Feeding) میتود هم وایي.

## - ښېګڼې!

- په لږ وخت کې ډېر کار کېږی، وخت سپماکوي او ټول کورس په آسانی سره ژر ختمېږي.

- دا یـو ارزانـه او اقتصـادي میـتود دی ښوونکـی پـه تدریـس کې یوازې له تـورې تخـتې او تباشیر څخه کار اخلي. د زده کړې مواد او نورو وسایلو ته ضرورت نه پیدا کېږي.
- د ماشوم د اوریدو قوت پیاوړی کوي.
- د زده کوونکـي منطقي استعداد وده مومي ځکه چې مواد پکې په منطقي توګه تدرسېږي.
- دا میتود د تاریخ، ادبیاتو او داسې نورو مضامینو د تدریس له پاره ګټور دی.

## نیمګړتیاوې!

- دا میتود د ماشوم د زده کړې په پرنسیپونو متکي ندی.
- د اروا پوهـنې د عـلم له مخې دا میتود نه د ماشومانو له حالت سره مناسب دی او نه د ماشومانو د ذهنی او ښونېز پرمختیا له پاره ګټور دي.
- د عملي کار امکان په کې نشته.
- د زده کوونکو غیر فعال کېدون د ماشوم شوق او ابتکار له مینځه وړي.
- پـدی میـتود کـې د زده کوونکو فردي اختلافات په نظر کې نه نیول کېـږي. حـال دا چـې ټول زده کوونکي د روش، ذکاوت او استعداد له مخې یو له بله سره توپېر لري. بنا تدریس باید د هغوی له سویو سره سم وشي. خو دا امکانات د لکچر په میتود کې نه لیدل کېږی

ځکــه چــې دلــته ټــول زده کوونکو ته يوشان تدريس کېږي چې د اروا پوهنی له نظره سره مطابقت نلري.

- په دې ميتود کې نا ممکنه ده چې د ډېر وخت له پاره دګڼ شمېر زده کوونکو توجه، بې برخی اخستنی ځانته را واړول شي.
- دا ميـتود د ماشـومانو له پاره په زړه پورې ندی. ځکه چې عملي کار نه وي نو يوازې لکچر ماشوم ستړی او ستومانه کوي.
- لکچـرونه د شاګردانو ژر هيرېږي. حـال دا چې د زده کړې تجربوي فعاليتونه يې ژر له فکره نه وځي.
- دا نامکـنـه ده چـې ټـول زده کوونکـي پـه يوه وخت کي په درس وپوهېږي ځکه چې د هغوی د کلېمو ذخيره هم محدود ده.

## ۳. د لکچر ميتود څنګه اغېزمنولای شو؟

- ښوونکی بايد لومړی خپل ځان د شاګردانو په ذهني ليول وپوهوي.
- د لکچـر پـه ميـتود کـې بـايد پـه زړه پورې مواد وکاروي چې د زده کوونکو ستړيا پرې لرې شي.
- په لکچر کې د غير موزون موادو له کار ولو څخه مخنيوی وکړې.
- لکچـر ورکوونکـی، کلـه چې درس ورکوی بايد مخکی تياری ونيسی او هغه وخت چې د ستړيا احساس مومي بايد پوه شي چې زده کوونکي هم ستړی

هغه اساسات چې د نصاب سرچينې هم بللې کېږي په لاندې ډول دي:

- زده کوونکي
- مضمون
- معاصر ژوند.

## و. د تعليمي نصاب تغيير او نوښت:

په تعليمي نصاب کې له تغييراتو څخه زموږ مقصد هغه تغيرات دي چې په يوه ټاکلي وخت کې د يوې ټولنې د اقتصادي او ټولنېزو بدلونونو له کبله په تعليمي نصاب کې را منځ ته کېږي. مګر د تعليمی نصاب نوښت او د تعليمی نصاب تغيير لږ څه تفاوت لري. د نوښت په صورت کې تر ژور غور او فکر کولو وروسته په نصاب کې يو نوی شی ځای په ځای کوي چې د نوموړي نصاب تجربي پياوړې او زده کوونکو ته په زړه پورې شي.

## ۳. د تعليمي نصاب اهميت، ونډه او دنده:

تعليمي نصاب د ښوونې او زده کړې په بهير کې د يوه ملت د پراختيا او پر مختګ له پاره حياتي ارزښت لري. چې بې له مناسب نصاب څخه يو ملت نه شي کولای، داسې هېواد وال را منځ ته کړي چې د ټولنې له پاره ګټور ثابت شي. تعليمي نصاب دا مسؤليت لري چې د ماشوم شخصيت ته د ټولنې له غوښتنو سره سم وده ورکړي. په ۱۳۵۸ کال د افغانستان د ښوونې او

شویدی اصولاً دې درس ته توقف ورکړي.

- لکچر باید ډېر زیات تکرار نشي.
- د دې له پاره چې د زده کوونکو توجه ځانته راواړوي نو ښوونکی دې د لکچر په وخت کې پوښتنې وکړي.
- زده کوونکو ته دې وخت ورکړل شي چې په لکچر کې فعاله برخه واخلي.
- د لکچر څخه د مخه باید شاګردانوته هم لیکلي مواد او هم د اړونده درس مرستندوي مواد وسپارل شي که پورتني ټکي په پام کې ونېول شي نو د لکچر میتود به اغېزمن او په زړه پوری شي.

## ۴. د لکچر نمایشي میتود:

د لکچر نمایشي میتود د لکچر د میتودیو ځانګړی میتود دې چې پدې میتود کې ښوونکی د یوې ټاکلې موضوع له پاره لکچر تیاروي او زده کوونکو ته یې په نمایشي توګه وړاندې کوي یعني د موضوع بېلابېل اړخونه شاګردانوته په عملي توګه څرګندوی.

پدې میتود کې د زده کوونکو تجربه یې مهارت تقویه کېږي. له دې میتود څخه د مضامینو په تدریس کې کار اخلي چې یوازې لکچر د هغوی له پاره کفایت نه کوي.

د مثال په توګه، که د یوه ښوونکي د درس موضوع د مکرسکوپ د

کار طریقه وي نو څنګه به ښوونکی وکولای شي چې، بې له ښودلو د مکرسکوپ څخه زده کوونکو ته قناعت ورکړي بناً لدې میتود څخه په عملي درسونوکې په لوړه پیمانه، کار اخستل کېږي.

ښېګڼې:

- د زده کوونکو د مهارتي انکشاف له پاره ډېر ګټور دی.
- دا ډېـر پـه زړه پوری میتود دی. ځکه چې د ډېر وخت له پاره د زده کوونکو توجه ځانته را اړوي.
- زده کوونکـي سترېانه حس کوي ځکه چې یوازې په غوږونو یې اوري او په سترګو ي ويني.
- د تدریس اساسات او قوانین د ژوند واقعتونو پوری اړه لري.
- دا میتود د زده کوونکو ابتکاري طاقت ته وده ورکوي.
- دا میـتود د هغـو درسـونو له پاره ډېر ګټور دي کوم چې د ښوونکي پـه نـه موجودیـت کـې ضـرر لـري د مثال په ډول، که د الکترولیز عُملـیه شـاګردان د ښوونکـي پـه غـیاب کـې تـر سره کړي نو دا به ډېره خطرناکه وي
- د شاګردانو تفکر ته پراختیا ورکوي.

## نېمګړتیاوې:

د نمایش لکچر میتود لاندی نېمګړتیاوې لري:

- د ښوونکـي زیـاد وخت ضایع کېږي. یعنی ښوونکی مجبور دې چې مواد تهـیه کړي او د نمایش له پاره یی په ټولګی کې ځای په ځای کړي چې په دې صورت کې پوره وخت ته اړتیا ده.
- دا ممکـنه نـده چــې یوازې په لیدو سره د زده کوونکو توجه جلب شي بلکه زده کوونکي باید عملاً برخه واخلی.
- دا میـتود پـه هغـه صـورت کـې اغېـزمن دي چـې د ټولګي د زده کوونکو شـمېر لـږ وي کـه د ټولګي د شاګردانو شمېر ګڼ وي نو د نمایش په لیدو او اورېدلو کی ستونزې رامنځته کېږي
- دا میـتود یوازې هغه ښوونکی په اغېزمنه توګه عملي کولای شي چې ښه ماهر او مجرب ښوونکی وي هر ښوونکی دا میتود عملي کولای نه شي.
- هغـه مـواد چــې د نمایش په میتود کې کارول کېږي ډېر ګران دي چې د رانیولو له پاره یی ډېرو پېسوته ضرورت وي.

## ۵. د دندې ورکولو میتود:

دنـده ورکـول (Assignment) ترکیـب/ کلمه یو کس ته وظیفی ورکولو معنا لري چــې تـر سـره یی کـړي. پـه پخـوا وختونو کې ښوونکي به خپلو شاګردانو ته یوه

وظیفه د کورنۍ وظیفې په ډول سپارله او شاګردانو به په نوموړی وظیفې کار کاوه، خو د ښوونکي مقصد دا وه چې زده کوونکی مشغول وساتي دا ډول وظیفه کوم ځانګړي اهداف نه درلودل بیا هم مونږ ویلی نه شو چې دا میتود به بالکل غیر موثر وي.

نوموړی میتود د تعلیم له مهمو میتودونو څخه ګڼل کېږي. د دندې ورکول باید بې ګټې نه وي، مشخص اهداف ولري او ښوونکی باید د دندې ورکولو میتود په ارزښت او قوانینو وپوهېږي.

د مثال په ډول، کوم فعالیت چې ښوونکی زده کوونکو ته د دندې په توګه سپاري باید ټاکلی هدف ولري. یعنې پخوانی موضوع او نوی موضوع سره مستقیماً اړیکه ولري او هم مخکې له دینه چې دنده زده کوونکو ته حواله شي باید مهمې نقطې یې څرګندی او بېلابېل اړخونه یې توضیح شي نو که په دنده ورکولو کې دې ټکوته پام وشي نو دنده به ډېره ګټوره وي.

## ښیګڼې:

- دا متیود د ماشومانو د لوستلو او لیکلو مهارت تقویه کوي.
- د شاګردانو ابتکاري طاقت ته انکشاف ورکوي.
- پدې میتود کې زده کوونکي په ډله ییزه توګه کار کوي. خو د هغوی په مینځ کې د همکاري روحیه تقویه کوي.
- زده کوونکی ته د مسؤولیت احساس ورکوي او د آینده زده

کړې له پاره يې هڅوي.

- په شاګردانو کې خود اعتمادي رامنځته کوي.
- دا ميتود په زده کوونکي کې تحرک پيداکوي.

## نیمګړتیاوی:

- دا ميتود ټولو حالاتوکې ګټور نه دی.
- لـه ټولـو زده کوونکـو څخـه غوښتل کېږي چې ورکړل شوې وظيفه په موفقـه توګـه تر سره کړي او هم له لايقو او با دسپلينه شاګردانو څخه دا توقع کېږي چې نوموړی وظيفه په ښه توګه اجرا کړی.
- د دنـدې ورکولـو ميـتود دوه اړخـيزه توقـع هـم له ښوونکـو او هـم له شـاګردانو څخـه لـري کـه دواړه خـواې ښه روزل شوی نه وی نونشي کـړاې چـې د دندې ورکولو ميتود کاميابي خواته سوق کړي او له بلې خـوا دا هـم ويـلی شو چې د ماهرو ښوونکو شمېر په افغانستان غوندی غريب هيواد کې بالکل لږدي.

۴- پـه ځيـنو وظـيفو بـاندې کـارکول بـې له ښوونکی څخه خطرناک دی. بايد هغه وظيفی د ښوونکی تر نظارت لاندی ترسره شي.

# ٦. عصري ستراتيژۍ او طريقې

## ۷. د پروژې ميتود:

د پروژې ميتود د تدريس يو ځانګړی ميتود دی. په دې ميتود کې ماشومان په زده کړه کې داسې مهارتونه تر لاسه کوي چې په عملي توګه ټول مشکلات په خپل ځای کې حل کړي.

داکتر کيل پاتريک (Dr.Kill Patrick) وايي. " پروژه په زړه پورې مقصدي فعاليت وي چې په يوه ټولنيز محيط کې کېږي." له پورتني تعريف څخه څرګندېږي چې پروژه بشپړ شوی فعاليت بني او د شاګردانو په هڅې سره تر سره شوی وي.

**مثال:**

که بالفرض زده کوونکي وغواړي چې د بغلان ولايت د خلکو د ژوند په هلکله يوه پروژه واخلي نو شاګردان بايد د دي پروژې اړوند له مختلفو کتابونو څخه داسې معلومات راټول کړي چې د نوموړی ولايت د خلکو د رسم او رواج، د ژوند معيار او د هغوی د کورونو او لباسونو په برخه کې پوره توضيحات ورکړی شوی وي او هم بايد هغوئ د کورونو نمونې پکښې ذکر وي چې له خټو او يا له خښتو څخه جوړ شويدی نو هله ويلې شو چې دايوه پروژه ده.

## د پروژې ډولونه:

پروژه د نظم او ترتیب په لحاظ دوه ډوله ده

### الف. انفرادي پروژه:

په دې ډول پروژه کې زده کوونکي په انفرادي توګه په يوې پروژه باندی کار کوي چې داهم دوه حالته لري.

لومړی حالت: هر زده کوونکی په عین پروژه باندې په انفرادي توګه کار کوي.

دوهم حالت: هر زده کوونکی په ځانګړی پروژه باندی کار کوي.

د پروژه لومړنـی حالـت د دوهـم حالـت پـه نسـبت بهـتر دي ځکـه چې ښوونکـی تـه بـه ډېـره مشـکله وي چـې ټـول زده کوونکـي پـه انفـرادي توګه رهـنمايي کـړي او کـه زده کوونکي په يوې پروژی باندی کار وکړی نو دا به د ښوونکي له پاره ډېر سهولت وي.

### ب. ډله ییزه یا ګروپي پروژه:

پـه دا ډول پـروژه کـې بشپړ ټولګی یا په ګروپی شکل یو ځایی په یـوې پـروژې بـاندې کـار کوي. یعنی زده کوونکي د خپل خوښی سره سم یوه پروژه ټاکي او یو ځای پرې کار کوي.

د مـثال پـه ډول، پـه نمایشـي پروګـرام کـې ځیـني زده کوونکـي سـتیج جوړوي ځینی د ممثلینو دنده په غاړه اخلي او ځیني نورکارونه تر سره کوي.

## ۱. د پروژې میتود قوانین:

۱. یوه پروژه باید د زده کوونکو او ښوونکو په ګډې همکاری سره انتخاب شي.

۲. د پروژې تر ټاکلو د مخه باید د شاګردانو تعلیمي، فزیکي، ذهني استعداد په نظر کې ونیول شي.

۳. پروژه باید مستقیماً د زده کوونکو ورځینی ژوند سره اړیکه ولري.

۴. پروژه باید د ماشومانو له ذوق سره سم انتخاب شي.

۵. پروژه باید څرګند هدف ولري. ځکه چې بی هدفه، بی معنا فعالیتونه د زده کوونکو علاقه مندي نه شي پارولې.

۶. پروژه باید عالي کیفیت ولري چې د شاګردانو استعدادونو ته وده ورکړي.

۷. د پروژې لګښت دومره زیات نه وي چې زده کوونکي یې له عهدې څخه عاجز پاتې شي.

۸. باید داسې پروژې وټاکل شي چې دوه اړخیزه همکاریو ته پراختیا ورکړي.

۹. ښوونکی باید د فعالیت په وخت کې زده کوونکي رهنمایی کړي او د پروژې په پای کې د هغې ټولې غلطي اصلاح کړي.

## د پروژې د بشپړیدني بېلابېل قدمونه:

د ښوونې او روزنې ماهرانو لاندني پنځه قدمونه د پروژی میتود له پاره وړاندې کړي دي.

### - د پروژې پیشنهادول:

د پروژی میتود په لومړی قدم کې د پروژی پیشنهاد مطرح کېږي پدی اړوند ډېر مهم ټکي يې د پروژې د عنوان ټاکل دي چې د ښوونکي له خوا باید تعین نه شي. بلکه ښوونکي د مناسې، گټوری او هدفمني پروژی په تعینولوکي له زده کوونکو سره مرسته وکړي پروژه باید د تعلیمی نصاب سره سم ښوونېز او ټولنېز ارزښت ولري، نه دا چې ډېره طولانی وي چې زده کوونکی خپل ذوق له لاسه ورکړي او نه دا چې دومره لنډه وي چې پوره معلومات پکښی ځای نه شي.

### - د پروژی پلانول:

په دوهم قدم کې زده کوونکی د پروژی په پلان جوړولو پېل کوي. هغوی ټول ضروري مواد او اساسی سرچېنی چې د پروژی له پاره پکارېږي راټولوي چې دلته هم د ښوونکي یوازېنې رول لارښونه ده. هغه د زده کوونکو سره د پلان په جوړولو کې پوره مرسته کوي.

## - د پروژې تر سره کول:

دا قـدم د پـروژې ډېـر اوږد او عمـلي پـړاو دې چـې د پـروژې کامـیابي او ناکـامي همدې پړاو پورې اړه لري پدی مرحله کې ښوونکي باید په غور سره د زده کوونکـو عمـلي کـار تـر نظـارت لاندی ونیسی د زده کوونکو مزاحمت ونه کـړي او نـه دا چې د هغوی په پروژه کې څه بدلون او تغیرات رامنځته کړي. کـه چـیرې خیـنی نېمګړتـیاوې وي، نـو ښوونکی باید هغه یاداشت کړي او د راتلونکیو لارښوونو له پاره دې زده کوونکیو ته وسپاري.

## - د پروژې ارزیابي کول:

دا هم د پروژی یو مهم قدم دي، چې بې له ارزیابی او اندازه ګیري څخه پروژه غیر موثره وي.

د پـروژې ارزیـابی بـاید دوه اړخـیزه وي یعـنی هم د ښوونکي او هم د زده کوونکي له خوا تر سره شي

شـاګردان د ښوونکـي له خـوا د ارزیـابی څخـه د مخه خپل کارونه په خپله ارزیابی کوي چې څومره شوي دي.

د پـروژې ارزیـابی باید د پلانونو، اجرآآ تو او تر لاسه شویو نتیجو په رڼا کې وشي. د پروژې دا قدم ډېر مهم قدم دی. څکه چې زده کوونکي په خپله د

روزنـې پالیسـي داسې وه چې زده کوونکي باید د دې جوګه شي چې علم زده کـړي. خـپل مهارتونو او نظریوته وده ورکړي چې شخصیتونه یې په هر اړخیز ډول د ټولـنېز، کلـتوري، اقتصـادي او محـیطي واقعیتونو په تناسب په ملي او بین المللي سطحه پراختیا ومومي.

یو تعلیمي نصاب لاندې دندې لري.

## د ماشوم هراړخیز انکشاف:

د تعلـیمي نصـاب یـوه ارزښناکه دنده د ماشوم هراړخیز انکشاف دی چې پـه سـمه توګـه بـاید تـر څـېړنې لاندې ونیول شي. چې د تعلیمي ادارې دننه فعالیـتونه، او تـر تعلـیمی ادارې، دباندې فعالیتونه ټول په تعلیمي نصاب کې شـامل دي نـو ځکـه د ماشـوم پـه فـزیکي، ذهـني، احساسـاتي. اجتماعي او اخلاقـي انکشـاف کـې یـو ګټـور رول تر سره کوي چې په نتیجه کې د ماشوم شخصـیت پـه مـتوازنه توګـه وده مومي. سربېره پر دې داسې تجربې ولېږدوي چې په ورځني ژوند کې خپل ټول ضرورتونه په آسانی سره حل کړائ شي.

څرنګه چې انسانان د ذوقونو، تمایلاتو، روشونو او ذکاوت له مخې سره توپېر لري نو تعلمیی نصاب داسی ښه چانسونه هغوي ته مهیا کوی چې هر یو یې له خپل استعداد سره سم ترې ګټه واخلي.

## د ماشوم د اساسي مهارتونو انکشاف:

د یوې ژبې زده کړه پر څلورو مهارتونو (اورېدلو،غږېدلو، لوستلو او لیکلو)

هغو معلوماتو او مهارتونو په ارزښتنو پوهېږي چې په پروژه کې يې تر لاسه کړي دي.

## - د پروژې ريکارډ ساتل:

د پروژې ميتود بل مهم قدم د پروژی ريکارډ ساتل دي چې دا ريکارډ د زده کوونکيو په وسيله د پروژی په پای کې ساتل کېږی. پدې ريکارډ کې بايد د پروژی وړانديز (پشنهاد)، پلان، مناقشی، مباحثی موجودی وي او هم شاگردان د هغو دندو ريکارډ ساتي کوم چې په لومړی قدم کې په هغوی ويشل شوی او تر سره کړي يې دی. او هم پدې ريکارډ کې بايد په مفصله توگه لېدل شوی، سروی شوی ځايونه، نقشې او داسی نورشيان شامل وي.

## ښېگڼی:

۱. دا ميتود د زده کړې اروا پوهنی په اساساتو متکي دي او هم پدې ميتود کې ماشوم بامفهومه فعاليتونه تر سره کوي او تعليمي اهداف يی د ماشوم ورځني ژوند سره اړيکې لري.

۲. پدی ميتود کې اساسي عنصر د ماشوم فعاليت دی چې دا فعاليت د ماشوم د ذوق او شوق د ډېر والي سبب گرځی.

۳. دا ميتود د خواری کښ زده کوونکي وقار ساتي.

۴. دا میتود د زده کوونکو تر منځ او همدا ډول د شاگردانو او ښوونکی تر منځ د همکاري روحیه تقویه کوي څکه چې دوی ټول یو ځاي کار کوی.

۵. د فکر آزادي د کار آزادي د دې میتود اساس ګڼل کېږی چې واقعاً په ښوونه او روزنه کې دموکراسي رامنځته کوي.

٦. په شاگرد کې پر ځان د باور او اطمینان حس ته وده او پراختیا ورکوي.

۷. دا متیود د زده کوونکو تر منځ رقابت پیدا کوي چې په نتیجه کې ابتکاري تفکر ته هڅول کېږي.

۸. د شاگردانو له پاره داسي زمینه برابر وي چې په صحیح توگه خپلو مشاهدوته انکشاف ورکړي او هم د پوښتنو کولو روحیه یې تقویه شي.

## نېمګړتیاوې:

دا میتود هم له نېمګړتیا څخه خالي ندي نېمګړتیاوې یې په لاندې ډول دي.

۱. دا میتود یوازی په ساینسي مضمونونو کې مرستندوې وي خو په نورو کې هومره ګټور نه وي.

۲. پدی میتود کې ډېر وخت ته ضرورت دي.

۳. پدې میتود کې زده کوونکي د خو محدودو شیانو په هکله معلومات تر لاسه کوي.

۴. د دې میتود اړتیاوې، موجوده درسي کتابونه پوره کولای نه شي.

۵. لـه ښوونکـي څخـه دا غوښتـنه کېـږي چـې زده کوونکـي پـه ټولـو مضمونونو کـې مهـارت پـیدا کـړي حـال دا چـې پـدی میتود کې یې امکانات لږ دی.

٦. لکه څنګه چې لیدل کېږي پدی میتود کې سیاحت(ګرځیدنه) هم شامل دی او هـم ځینو سامانونو او لوازموته ضرورت پیښېږی. بناً د هغوی د تهیه کولو له پاره مالي مرستې ته ضرورت دي.

٧. د داسی میتود له پاره یو منظم مهال ویش هم ترتیبولای نه شو.

٨. ځیـنې وخـتونه پروژې داسې مبهمې او غیر واضح وي چې د زده کوونکو له استعداد څخه باالکل بهر وي نو د بشپړیدو امکان یې نه لیدل کېږي.

## ٩. د پوښتنوکولو روش:

اصـطلاحاً د پوښـتـنو (Inquiry) ترکیـب/ کـلمه د تحقـیق کولو (Investigate) سپړل، پلټنه کول (To explore) او کتل پلټنې کونو(Interrogate) معنا ګانې لري. خـو پـه ښوونـه او روزنـه کـې د پوښـتـنی کولـو له روش (Inquiry Approaches) څخه د تعلیم د ځانګړي متیود په حیث کار اخستل کېږی.

پـه تدریسـي چـارو کې دا نوی میلان دی چې د جان دیو (John Dewy) په وسیله رامنځته شوی دی.

دا میتود په پوهه او بصیرت سره د حقیقت موندلو د قوانینو پر بنسټ ولاړ

دی. یعنې د مشاهدو، څارنو، او پلټنو په ترڅ کې معلومات راټولوي بیا د دې معلوماتو په رڼا کې حقیقت څرګندوي.

د مثال په توګه، په دې میتود کې یو ښوونکی د یوه مضمون/عنوان لکچر ورکوي او بیا له زده کوونکو څخه سوال کوي چې ځواب یې ووایي یا یو مشکل وړاندې کوي چې حل یې کړي او یا د یوې ستونزې حل ترې غواړي نو زده کوونکی زیار باسي چې دې پوښتنو ته د حل لارې چارې ولټوي. په دې مورد کې ښوونکی د پروګرام د پرمخ بوونکي رول لري او زده کوونکي د نوموړی هدف په رڼا کې معلومات او منابع برابروي. تر هغې چې زده کوونکي خپل ټاکلي هدف ته ورسېږي.

نو ویلای شو چې دا میتود ممکن زده کوونکې په انفرادي یا ډله ییزه توګه وکار وي. که یوه پوښتنه یا مشکل زده کوونکو ته په انفرادي توګه ورکړل شوی وي او له هغوي څخه په جلا توګه ځواب یا نتیجه غوښتل شوې وي نو دې میتود ته انفرادي تحقیق وایې او که د زده کوونکو له یوې ډلې او یا درست ټولګي څخه غوښتل شوې وي چې جواب ووایي او یا د ورکړل شوې ستونزې د حل لاره پیدا کړي نو دا ډول میتودو ته ډ له ییز تحقیق ویل کېږي. د دې میتود په وسیله ساینس، ریاضی او داسې نور مضامین په موفقانه ډول تدریسېږي.

په لاندې ټکو کې د پوښتنو کولو د میتود مثبت او منفي ټکي تر کتنې لاندې نیول کېږي.

بنېګڼې:

د پوښتنې کولو روش په تعلیم کې ډېر موفق میتود دې چې د ښوونې او روزنې په نویو نظریو ولاړ او لاندې ښېګڼې لري.

۱. پدی میتود کې ټول فعالیت زده کوونکي کوي او هم په بشپړه توګه د زده کړې په بهیر کې فعالانه برخه اخلي نو ځکه د زده کړې یو علمي میتود ګڼل کېږي.

۲. د جان د یوی (Jhon Dewy) او د ښوونې او روزنې د نورو ماهرانو د نظریو پر اساس "ښوونه او روزنه د یوه فرد هراړخیزې پراختیا ته وایي." چې دا میتود د همدې مقصد په منظور رامنځته شوی دی. پدې میتود کې زده کوونکي د زده کړې په ټول بهیر کې برخه اخلي او په خپله علم حاصلوي. دا میتود زده کوونکو ته داسې لارښونه کوي چې هر څه په خپله درک او پری ویوهېږی، چې همدا په حقیقت کې د ښونې او روزنې وروستنې هدف دي.

۳. دا میتود د ښوونې او روزنې اروا پوهنې پر صحیح اساساتو لکه د زده کوونکو برخه اخیستنه، د ښوونکي نظارت او داسې نورو باندی متکي دي.

۴. پدی میتود کې د زده کوونکو ابتکاري طاقت او همدا شان د هغوی د پوهیدنې او درک قوه هم انکشاف مومي.

۵. دا میتود د زده کوونکو د ورځیني ژوند ،د اقتصادي، ټولنېزو او نورو

مشکلاتو په حلولو کې مرسته کوي.

٦. پـه ګـروپی تحقیق کې د دوه اړخېزې همکارۍ روحیه د زده کوونکو په منځ کې انکشاف مومي.

٧. دا میتود د زده کوونکو تحلیلي طاقت د زیاتوالي له پاره ډېر ګټور دي.

٨. د زده کـړې پـه بهېـر کـې د زده کوونکـو علاقـه مندي او دلچسپي د توجه وړ ده. پـدی تعلـیمي میتود کې زده کوونکي د زده کړي په پروسه کې خپله علاقه مندۍ ښيې. څکه چې هغوۍ په خپله په زده کړی کې فعالانه برخه اخلي.

٩. هغـه علـم چـې دوې د عملـي کار په پای کې تر لاسه کوي هڅېکله به له یاده ونه وځي او په دایمی توګه به د هغوی په حافظه کې پاتې شی.

١٠. دا میـتود د زده کوونکـو (مـنطقی، عقـلي، او تفکـري) پوهـې تـه (د سـتونزو د حلولـوپـه مثبـت روش کـې همـداډول د تصـمیم نـیولو پــه عمـلي روشونوکې) وده ورکوي.

## نېمګړتیاوې:

د پوښتـنو کولـو میـتود هـم پـه بشپړه توګه له نېمګړتیاوو څخه خالي ندی. دا میتود هم ځینې کمزوري ټکي لري چې په لاندی ډول تر کتنې لاندی نیول کېږي.

١. دا میتود ډېر وخت غواړي چې زده کوونکي پوښتنې ته ځواب پیدا کړي او یا د ستونزو د حل لاره ومومي.

۲. د دومره ډېر وخت په لګولو سره هم دا میتود په یقیني توګه ویلی نه شو چې آیا دا کورس به بریالی شي او کنه.

۳. دا میتود په موثره توګه په ساینسي مضامینو او ریاضاتو کې پکار وړل کېږي مګر په نورو مضامینو کې موثریت نه لري.

۴. په ځینو مواردو کې دا میتود ډېر ګران تمامېږي.

۵. مناسبه روزنه، د ځینو آسانتیاوو برابرول، لاربنونې او د نورو ضروري معلوماتو برابرول د ښوونکو دنده ده چې زده کوونکو ته یې مهیا کړي. مګر زموږ ښوونکي پدې اړوند ښه روزل شوي نه دي.

٦. زمونږ د ښوونځی مضمونو ته او کورسونه د پښتنو کولو روش په اساس ترتیب شوی ندي بناً د پوښتنو کولو روش زموږ په تولګیو کې په پوره پیمانه تاثیر نه لري.

## ۱۰. کوچنې (مایکرو) تدریس (Micro Teaching)

کوچنی مایکرو تدریس د درس ورکولو یو مدرن (عصري) میتود دې. د مایکرو کلمه د کوچنی په معنا کارول شوېده. په دې میتود کې ښوونکی یوه کوچنی موضوع د زده کوونکو یوه ګروپ ته تدریسوي. دا میتود په ۱۹٦۱ کال پېل او پر ۱۹٦۳ کال کې یې رسمی بڼه غوره کړه.

دا میتود معمولاً د ښوونکو دروزنی په پروګرامونو کې پکارېږي. دا میتود د ژبې په تدریس کې ډېر ګټور دی. د دې میتود په وسیله خصوصاً د ژبې د زده کړې مهارتونه په ښه توګه وده کوي. او هم دا میتود په پرمخ تللو هېوادونو لکه امریکا، فرانسه او داسې نورو کې تطبیقي ښه غوره کوي. پدې میتود کې لومړی ښوونکی یو مهارت تعینوی وروسته یې د ویډیوکست په وسیله ښوونکې ته ښيي. بیا د دې مهارت په رڼا کې ښوونکی خپل درسي پلان ترتیبوی او بیایی د زده کوونکو وړو ګروپونو ته تدریسوي او نومړې موضوع دوهم ځل‌له پاره په ویدیوکست کې ښودل کېږي بیا مباحثه، مناقشه او مشاهده کېږي. دا پروګرام تر هغه تکرار ېږي چې زده کړه بشپړه شي.

دا میتود د زده کړی په زړه پوری میتود دی ځکه چې ښوونکی له ځپلو نیمګړتیاوو څخه زده کړه کوي.

دا متیود بې له کوم شک او تردید څخه نه یوازې د ښوونکو د روزنې له پاره کارول کېږي بلکه په ټولګي کې د زده کوونکو زده کړې مهارتونو د تقویې له پاره هم تطبیقي اړخ لري یعنی په ټولګی کې شاګردانو ته یو مهارت ورکول کېږی او وروسته دا مهارت په ویدیو تیپ کې ښودل کېږې زده کوونکي یې په غور سره اوري او هم یې مشاهده کوي. په پای کې زده کوونکي کوښښ کوي چې عین مهارت په خپله په ټولګي کې نمایش ورکړي داخل نومړو زده کوونکو ته د ویدیو

تیپ په وسیله ثبت شوی درس، دوهم کرت ښودل کېږی. پدی وخت کې خپلی لاسته راوړنې د معیاری ورکړل شوی مهارت سره پرتله کوي او ګوري چې تر کوم حد پوری خپل هدف ته رسیدلي دي؟ پدی ډول دوی خپلی نېمګړتیاوې له منځه وړي او خپل تعلیمي مهارتونه د دي ډول زده کړي په وسیله له منځه وړي.

ښېګڼې:

۱. پدی میتود کې ډېر وخت سپما کېږي. ځکه چې په لږ وخت کې ډېر کار تر سره کېږی.

۲. کله چې زده کوونکي په ګروپونو وویشل شي نو په ټولګی کې د درس پیچلتیا له منځه ځي.

۳. دا میتود د ژبنیو مهارتونو د زده کړی له پاره ګټور دی.

۴. زده کوونکو او ښوونکو ته په خپل ځای کې فیدبیک رسېږی. دا فیدبیک د زده کړی په بهیر کې ډېرضروری دي.

۵. د زده کړی دا میتود یو ګټور میتود دې چې د زده کوونکي علاقه تر وروستي حده پورې ساتي.

۶. دا متیود دومره قیمتي ندی. په دې میتود کې یوازې ویډیو ټیپ پکارېږي،بي له ویډیو ټیپ څخه په نورو وسیلو کې چې یوازی پروګرام ثبت کړي، هم پر مخ بوول کېږي.

## ۱۱. د پروګرام مطابق "برنامه يي" زده کړه:

د پروګـرام مطـابق زده کـړه په تعليمي ميتودو لوژۍ کې يوه نوی تګ لاره ده. پـدې ميـتود کـې زده کوونکـو تـه ځينې معلوماتونه په تدريجي ډول چې (لـه آسان څخه مشکل لوری ته ځی) تهيه کېږي. د تدرسي موادو هره برخه يـو مشـخص مفهـوم پوری اړه لري. ښوونکی مستقيماً د هر درس په باب له زده کوونکـو څخـه پوښتـنی کـوي او له ماشـومانو څخه هيله کوي چې جوابونه يې ووايی. يـوه موضـوع لـه بلـې موضـوع سـره مستقيماً اړيکې لري. يعنې ټول داسی زنځـيري ارتباط لري چې لومړی برخه د دوهمې برخې له پاره اساس تشکيلوی. مخکـې لـه دې چې د درس دوهمـې بـرخی تـه ورسېږي، ماشومانو د لمړۍ بـرخی لـه پـاره ځوابونـه برابـر کـړي وي چـې پـدې تګـلارې د ماشومانو دلچسپې او علاقه مندی له زده کړی سره ډېرېږي.

کلـه چـې ماشـومان خـپل ځوابونـه د پخوانـي پروګرام له پوښتنو سره پـرتله کـوي د درسـتوالي پـه صـورت کې هغوی د خوشالۍ احساس کـوی او هـم د بـل پروګـرام له پـاره ډېر تشويقېږي. د پروګرام هره بـرخه د راتلوونکـي پروګـرام دبـرخی سـره منطقي تسلسـل لري. د پروګـرام مطابق زده کړه کې اساسی مفهوم دادی چې کوم معلومات پـه يـوه کـورس يـا درسي واحد کې وړاندی کېږی درس په ځانګړو او مشخصو برخو ويشی چې يو له بله سره منطقي اړيکې لري.

بـاندې مـتکې ده تـر څـو چې دا څلور مهارتونه ښه انکشاف ونه کړي نو يوه ژبـه زده کېـدای نـه شـي. دغـو مهـارتونو ته بايد هغومره وده ورکړي شي چې خلک په هره رسمي ژبه باندې ښه وپوهېږي.

## د ډموکراتيک ژوند انکشاف:

د تعلـيمي نصـاب يـوه بلـه مهمـه دنـده داده چـې خلـک د موکراسـي پـه ارزښتـنو بـاندې وپوهـوي. يعنـې کـه يـو تعلـيمي نصـاب په ډموکراتيک اصولو بـاندې جـوړ شـوی وي نـو يقينـاً چې داسې هېوادوال به رامنځته کړي چې د ډموکراتيکو اصولو په رڼا کې خپل ژوند ښه تامين کړي.

## د ښه هيوادوال روزل:

افلاطـون او ارسـطو پـدې متـيقن دي چې ښوونه او روزنه بايد ښه او ګټور هېـوادوال ټولـنې ته وړاندې کړي. خو د ښوونې او روزنې دا سپڅلی هدف بې لـه مناسـب تعلـيمي نصاب څخه په لاس نه راځي. ځکه چې په خپله ښوونه او روزنــه پر تعليمي نصاب باندې ولاړه ده. يو ښه تعليمي نصاب کولاې شي، ماشومانوته داسی قدرت او توانايې ببښی چې.

(I) له خپل هيواد سره مينه ولري او هم خپله وفاداري ورسره عملاً تثبيت کړي.

(II) خپلې دندې او حقوق وپېژني.

(III) دموکراتيک او وسيع نظر ولري.

(IV) ښه ليډر(Leader) او مطيع وی.

دا میتود د خودي تعلیم داسی یو تخنیک دي چې ټول تعلیمي بار د تدریسي ماشینونو یا د پروګرام مطابق درسي کتابونو په وسیله تر سره کېږي.

## د پروګرام مطابق زده کړې ډولونه:

د پروګرام مطابق زده کړه دوه مهم ډولونه لري.

الف. خطی پروګرام.

ب. څانګه اییز پروګرام.

## - خطی پروګرام.

پدی پروګرام کې داسې موضوع په ورو قدمونو ویشل کېږي او په هر قدم کې مناسب تسلسل موجود وي دا قدمونه په منطقي توګه یو له بله سره اړیکه لري. په هر قدم کې لږ معلومات وړاندې کېږي او هم د معلوماتو په اړوند له زده کوونکو څخه پوښتنه کېږي. ځیني زده کوونکي ډېر ژر ځواب وایې او ځینې نور بیا پدې قادر نه وي چې ژر ځواب ورکړی.

## الف. څانګه اییز پروګرام:

په څانګه اییز پروګرامونو کې په مقایسوي توګه د ساعتونو وخت اوږدوي او همدا ډول د دې موډل پروګرام درسي موضوعات هم غټ وی.

په خطي پروګرامونو کې زده کوونکئ په مشخص سرعت سره پروګرام تعقیبولای نه شي نو ځکه د پروګرام په دننه کې وقفه ورکول کېږي چې پدې وقفه کې ځینې مواد مطالعه کړي. مګر په څانګه ییز پروګرام کې د زده کوونکو دا مشکل حل شوي دی.

پدې پروګرام کې د ماشومانو فردي اختلافات په نظر کې نېول شوی دی. هر زده کوونکي ته مستقیماً مواد ورکول کېږي او په متواتره توګه د شاګرد اجرآات تر کنترول لاندی نیسي.

## څنګه یو تعلیمي پروګرام تهیه او بنوولای شي؟

د یوه تعلیمي پروګرام تر ورانـدی کولوله مخه باید لاندې ټکي په نظر کې ونیول شی.

۱. تر هر څه له مخه باید لومړی مرحله کې موضوع وټاکل شي.
۲. په دوهمه مرحله کې باید د محتویاتو فهرست تیار شي.
۳. په دریمه مرحله کې درسي موضوع ګانی په ورو، ورو قدمونو ووېشل شي.
۴. په څلورمه مرحله کې په سلوکي لحاظ سره هدفونه پیژندل کېږي.
۵. له دې وروسته د موضوع اړوند معلومات ورکول کېږي.
۶. زده کوونکي دا موضوع لولي او جواب یې وایي.

۷. زده کوونکـي تـه د صـحيح خـواب په هکله معلومات ورکول کېږي کـه خـواب يـې درُسـت وی، تشويقېږي او که غلط وي نو هغه ته توصيه کوي چې ډېره مطالعه وکړي.

۸. وروسـتـه بـل فـريم زده کوونکـي ته وړاندی کېږي بناً د څو فريموبو تر وړاندی کولو ورسته پروګرام بشپړيږي.

## ۱۲.د پروګرام مطابق زده کړې قوانين:

## الف. په وړو، وړو قدمونو د موضوع وېشل:

د پروګـرامي زده کـړي لومړنی قانون د يوه مضمون موضوع ګانې يا محتويات پـه يوه لړ کوچنيو قدمونو وېشي. چې دا معلوماتي قدمونه د فريمونو په نامه يادېږي چې هر يو يې زده کوونکو ته جلا ،جلا وړاندې کېږي.

## ب. د نتيجې فوري ډاډګېرنه او اطمينان:

د دې قـانون پـه اسـاس زده کوونکوتـه فـوراً د نيـتجې فيدبيک ورکوي چې ايا جـواب يـې مناسـب دی او کـنه؟ کـه جـواب يـي درسـت وي نـو شـاګرد نـور هم تشـويقېږي او کـه جـواب يـي غلـط وي نـو لـږ تـر لـږه د درُست جواب خبر ورکوي چې د نورو پوښتنو له پاره تيار شي.

## ج. موثر جواب ورکول:

لـه دی قـانون سـره سـم بـاید د زده کوونکـو له خـوا جواب ورکړل شي. ځکـه چـې د دې پروګـرام هدف دادې چې زده کوونکي جواب له پاره آماده کـړي نـو کـه پـه پروګرام کی د شاګرد له خوا سمدستي جواب ونه ویل شي نو وایي چې په پروګرام کې څه نېمګړتیا موجوده ده.

## د. "خودي پرمختګ"

د دې قـانون سـره سـم هـر زده کوونکـی د خپل سلوک او کردار سره زده کـړه کـوي. یعـنی هغـه د ټولګـی د نورو غړو په وسیله پرمختګ نه کوي بناً پدی ځای کې د فردی اختلافاتو قانون د تطبیق وړ دي.

## هـ ارزیابي:

د دی قـانون مطـابق ښوونکـی پـه منظمه توګـه د خـپلو شاګردانو پرمختګ ارزیـابی کـوي چـې پـدی طـریقی سـره د پروګرام کمزورې نقطی او نېمګړتیاوي معلومـوي او بـیا د دي کمـزورو نقطـو په رڼا کې پروګرام جوړونکي کولای شي د نېمګړتیاو په لرې کولو سره خپل پروګرامونو ته تغییر ورکړي.

## ښېګڼې:

پروفیسور جان بلیت(Professor Jhan Blyth) او جان جاکوبسن (John Jacob Son)

د کالج لومړي کال د زده کوونکو له پاره یو ښوونیز پروګرام ترتیب کړ چې تر ازمیښت وروسته یې وویل:

۱. مونـږ د مشـق پـه تـرڅ کـې د ټولګـی وخـت ضـایع نـه کـړ او نه مو پر هغو زده کوونکو باندې وخت ضایع کړ چې بې له تیاري څخه ټولګی ته راغلي وو.

۲. مونـږ د غلطو مفهومونو په رابرسیره کولو کې وخت له لاسه ور نه کړ او نه مو پکښې تغیرات راوستل.

۳. د زده کوونکـو د ارزیـابي پروګـرام له مونـږ سـره د بـل پروګـرام په جوړولوکې مرسته وکړه.

۴. کله چې مو دا پروګرام د پخوانی پروګرام سره پرتله کړ نو ۳۰٪ موثریت بي لوړ شوی و. یعنې په لږ وخت کې زده کوونکو د درس زیات مواد زده کړي وه.

۵. فـردي اختلافات په پراخه پیمانه کم شول. مګر په بشپړه توګه یی له منځه ورې نه شول.

۶. د زده کوونکو علاقه مندي زیاته شوه او اخلاقي سلوکونویې انکشاف وموند.

۷. زده کوونکـو وکـولای شو چې بې د ښوونکی له مرستپر څخه یو مکمل سمستر تقیب کړي.

لـه پورتیـنو ذکـر شـویو حقـایقو څخه څرګندېږي چې د پروګرام مطابق زده کړه څومره ګټوره او د اهمیت وړ ده.

## د پروګرام مطابق زده کړې نېمګړتیاوې:

د پروګـرام مطـابق زده کړه که څه هم ځینې ګټې لري، خو ځینې نېمګړتیاوې هم لري مثلاً:

۱. د څو محدودو ټکو تدریس ډېر وخت غواړي.

۲. ځیـنې وخــت دا پروګـرام داسـې تـاریک شـي چې زده کوونکي بې علاقه ګی احساسوی او تشویق بې هم له منځه ځی.

۳. دا یو ډموکراتیک میتود نه دي. ځکه چې هر زده کوونکی خپل ټاکلي سوال ته جواب وایې.

۴. دا یوازې د محدودو ساحو له پاره ګټور دي.

۵. په داسې کتابونو کې د موادو تحقیق او پلټل جایز دي خو دا د یوه پروګرام په باره کې چاته قناعت نه شي ورکولای.

۶. زده کوونکـي بـی له دې نـه چـې پـه اړونده موضوع باندی پوهېدلی وي ممکن تصور وکړي چې جواب یی صحیح دي.

۷. د داســې پروګرام جوړول ډېر ګران وي. ځکه چې د ځینو موادو جوړول لکه د سمعي او بصري مرستندوي مواد ډېر قیمته دي.

۸. زده کوونکـي بـی لـه دې نـه چـې په اړونده موضوع باندی پوهېدلي وي ممکن تصور وکړي چې جواب یې صیح دي.

## ۱۳. گروپي تدريس:

گروپی تدریس د زده کړې په بهیر کې کاملاً یو نوی مفهوم دي چې پدې ورځوکې ډېر زیات په امریکا کې مروج شوی دی. دا یو ډول ټولنېز تدریس دي چې ښوونکي او زده کوونکي یو ځایي په کښې برخه اخلي. دوه یا ډېرو ښوونکو ته د کار مسؤلیت سپارل کېږي او په ډله اییز توګه کار کوي هغوی شاګردانو ته د درس یوه برخه یا بشپړ درس ورکوي. د ښوونې او روزنې یو متخصص "گروپی تدریس" داسې معرفی کوي.

۱. گروپی تدریس داسې یو ډول منظم تشکیل ښي چې په هغه کې دوه یا تر دوو زیات ښوونکې په ګډه درسی پلان تیاروي. او وروسته بیا ټاکلې موضوع یو یا ډېرو گروپونو ته تدریسوي په پای کې خپل کار، د پروګرام نیمګړتیاو د پیژندلو له پاره ارزیابي کوي تر څو وکولای شي د خپل پروګرام نېمګړتیاوې په آسانی سره اصلاح کړي. کارتوالسن(Carto Alson) گروپی تدریس په هراړخیز ډول داسې تعریف کړی دی:

گروپي تدریس د تدریس هغه چاپیریال ښي چې په هغه کې دوه یا تر دوو زیات ښوونکي چې په تدریس کې ښه مهارت لري، یو د بل په مرسته پلان جوړوي او د زده کوونکو یوه گروپ ته یې تدریسوي. د هغوی پروګرام او د زده کوونکو میتود د درس د ضرورتونو له مخی د تغییر وړ دي.

په لند ډول "گروپی تدریس" د یوه لړ ښوونکو ډله اییز تجربي، مهارتي او

تحقیقي هلې خلې دي چې د یوه ټیم په توګه کار کوي. ممکن دا ټیم د نهایي هدف د تر لاسه کولو له پاره دلویو لکچرونو، تلویزیني فلمونو او داسې نورو درسي مواد څخه کار واخیستل شي.

## د ګروپي تدریس هدفونه:

- د دې له پاره چې د ښوونیز او روزنیز بهیر لاپیاوړی شي، د ښوونکو تجربي مهارتونه پکار اچوي.
- د دې له پاره چې د زده کوونکو په ګروپي مهال ویش کې په آسانی سره تغییر راواستلای شي.
- د دی له پاره چې تدریس بهتر او ښه تقویه شي.

## د ګروپی تدریس قوانین:

- د اهدافو او تدریسي موادو مطابق د شاګردانو ګروپی شمېر تعین شي امکان لري چې په ګروپی تدریس کې د ضرورت له مخې د ګروپ شمېر لږ یا ډېر شي. مګر هغه مفهوم چې یو ټولګی باید مشخص تعداد ولري له منځه ځي.
- د موضوع له خصوصیت سره سم باید وخت تعیین شي او هم په ګروپي تدریس کې تغییر منونکی مهال ویش ډېر مهم دی.
- باید ښه کتابتون، سمعي او بصري کمکي مواد، ورکشاپ او لابراتوار

موجود وي.

- د ښوونکو ټیم باید په ډېر غور او دقت سره ټاکل شي یعنی ښوونکو ته د هغوی د ذوق، مهارت، او تجربو له مخې کار وسپارل شي.
- د تدریس معیار باید د زده کوونکو د استعداد له مخې وټاکل شي. د دې هدف د لاسته راوړلو له پاره باید لومړی زده کوونکي ارزیابي او وازمویل شي.

## ښېګڼې:

ګروپي تدریس په تعلیماتو کې د لاندي مثبتو ټکو په درلودلو سره له ښه میتود نو څخه ګڼل کېږي.

۱. طبعاً هر زده کوونکی غواړي چې خپل خیالونه او نظرونه څرګند کړي او هیله لري چې په مباحثو او مناقشو کې برخه واخلي. پدې اساسي ګروپي زده کړه کې داسې چانسونه هغوی ته برابر وي چې خپل احساسات او نظریات په آزاده توګه بیان کړي.
۲. په ګروپي تدریس کې ښوونکي هم موقع تر لاسه کوي چې خپل نظریات له زده کوونکو سره تبادله کړي.
۳. په ګروپي تدریس کې ښوونکی د دې له پاره چې خپل مسلکي

مهارت لاپسې تقویه کړي، هغوی مجبور دي چې د خپل مسلک اړوند قوي مطالعه وکړي.

۴. د ګروپي تدریس ډېره ارزښتناکه ګټه په دې کې ده چې زده کوونکي داسې موقع تر لاسه کوي چې د پوهو او ماهرو کسانو ګټورې نظریې واوري او هم د مختلفو ښوونکو له علم څخه استفاده وکړي چې په دې توګه دوي وکولای شي خپلو معلوماتو ته پراختیا ورکړي.

۵. کتوونکي یو د بل تدریس ارزیابی کوي او په مناسبو وړاندیزونو سره د تدریس نېمګړتیاوې پوره کوي.

۶. د تعلیم په موجوده میتودونو کې ښوونکی په ټولګی کې مسؤولیت لري. یو ښوونکی داسې موقع نه شي تر لاسه کولای چې د بل ښوونکی کار مشاهده کړي. مګر په ګروپي تدریس کې کولای شي چې یو د بل تدریس څخه ګټه واخلي.

۷. پدی میتود کې د تدریس معیار ډېر اوچت دی.

## نېمګړتیاوې:

۱. دګروپي تدریس بریالیتوب دښوونکو په دوه اړخیزې همکاری پورې اړه لري. خو زیا تره وخت ښوونکی پدی همکاری موفق نه وی. لدي کبله په ګروپي تدریس کي نېمګړتیاوې رامنځته کېږي.

(V) د خلکو پر عادلانه حقوقو متيقن وی.

(VI) خپله دنده په ايمانداری سره تر سره کړي پورتني مشخصات د هر يوه هېوادوال له پاره ضروري ګڼل کېږي.

د يوه ملت تعليمي نصاب بايد د دې قابليت ولري چې داسی هيوادوال وروزي چې پورتني مشخصات ولري.

## د تعليمي نصاب کلتوري مفهوم:

کلتور مادي شيان لکه لباس، خوراک او کورونه او همدا ډول غير مادي شيان لکه ژبه، مذهب، عادات، معتقدات او روشونه احتوا کوي.

دا د تعليمي نصاب دنده ده چې د ټولنې له ضرورتونو او هيلو سره سم د کلتور متعلق شيانوته خاص پام وکړي او له يوه نسل څخه و بل نسل ته يې ولېږدوي. همدا ډول، له کلتور څخه د بدو شيانو لرې کول او پر ځای يې د نويو ښو شيانو ځای په ځای کول هم د تعليمي نصاب دنده ګڼل کېږي. په دې توګه نوموړي نصاب کې د ټولنې په ګټه مثبت تحول رامنځ ته کېږي.

په مسلمان هېواد لکه افغانستان کې بايد تعليمي نصاب د اسلامي کلتور او ملي ارزښتونو په رڼاکې داسی ډيزاين او ترتيب شي چې د ماشومانو شخصيت ته هراړخيزه وده ورکړي له هغو ، څخه وسيع فکره او دين خوښوونې شخصيتونه جوړ شي چې د ګماتيزم يعنې بې اساسه او پوچو عقيدو له طرفدارای څخه ډډه وکړي.

## څلورم فصل:

## پنځم فصل:



## شپږم فصل:



## معیارونه:

## اووم فصل:






# تعلیمي نصاب

# او

# ښوونه

بیـــفیـــر

د افغان مهاجرو له پاره اساسي زده کړې

## اتم فصل:

gtz

BEFARe



# تعلیمي نصاب




# او

# ښوونه




بیــفیــــر

د افغان مهاجرو له پاره اساسي زده کړې

**Title of the book:**

Curriculum and Instruction

**Author:**

Assist.Prof.Ab. Satar Nadir

Consultants:

Shah Agha Mujadidi

Prof. Abdul Haq Emal

**Editor:**

Nurul Habib Nisar

**Composer**:

Wahida Ahmadi

**Publisher:**

GTZ- BEFARe

Knowledge Center

**Funded by:**

AREP/CIDA

**No of Copies**:

First Edition, December, 2003

**د کتاب نوم:**

تعلیمي نصاب او ښوونه

**مؤلف:**

پوهنمل عبدالستار نادر

**مشاورین:**

شاه آغا مجددي

پوهنوال عبدالحق ایمل

**اډیټور:**

نور الحبیب نثار

**کمپوزر:**

وحیده احمدي

**خپرونکی:**

جي تي زيډ- بیفیر

علمي مرکز

**مالي مرسته :**

د افغان مهاجر له پاره تعلیمي پروګرام

**تیراژ:**

لومړی چاپ، قوس، ۱۳۸۲

# بسم الله الرحمن الرحيم

## یادونه

جي تي زیډ- بیفیر (GTZ-BEFARe) د ښوونې او روزنې د کیفیت د ښه کولو له پاره د خپلو هلو ځلو په لړ کې غواړي چې د تعلیمي نصاب په اړه هم ښاغلیو ښوونکیو او نورو مینه والو ته په زړه پورې مواد برابر کړي. په دې هکله دا دی دغه رساله د امتحاني موادو په توګه تهیه شوې ده چې د تعلیمي نصاب مفهوم، اساسات، وده، اهمیت، هدفونه، ډولونه، ښېګڼې، محدودیتونه او داسې نور اړوند مطالب تشریح کوي.

د دې رسالې په ترتیبولو کې له بېلا بېلو منابعو څخه استفاده شوې ده. باور لرو چې لوستونکي به ورڅخه د خپل ضرورت او وس مطابق په زړه پورې ګټه واخلي.

په پای کې له ښاغلیو ښوونکیو، څارونکیو او نورو د نظر له خاوندانو څخه هیله کوو چې د دې رسالې د محتوا د لا ښه کېدو او موثره کېدو په اړه خپلې نظریې او سپارښتنې د جي تي زیډ- بیفیر علمي مرکز ته په لیکلي ډول را واستوي.

منته

میر عبدالمالک هاشمي

د علمي مرکز مشر

## دوهم فصل:

## درېیم فصل: